


اتم کال دریمه ، پرلپسې ۶۷ګڼه ،جمادی الاولی ۱۴۳۵ مارچ ۲۰۱۴م

# دجهادي عملیاتو انځورګر ولایتونه



# باران

*قاري عبدالستار سعيد*

دښتې په ګلو غرونه غواړي په خیریو باران
کلیوال وایي خدای دې وکړي په للمیو باران

دترږیو زړونوله براسونو نه مو وریځ جوړیږي
تل مو راغوښتی دی په سویو اسویلیو باران

خدایه له دې نه هم لا لوی رحم ته لاري څارو
لکه د سرې دښتې په ترخو سپیلنیو باران

باداره یو ځل خو یې ښه په مزه وروه
په غره په سمه په درو او په غوندیو باران

داچې غزل مې لپه لپه شو دعا دعاشو
ګوندې راشي وهي په ستړیو لارویو باران

سعیده تل مې رایادیږي دهجرت وختونه
چې په شرنګا راوربده به په کېږدیو باران

# کـــــابل

## کابل کې دوزارت داخله ډګروال ووژل شو

دکابـل د ښـار د٦مـه نـاحیې د دشـتي برچـي اړوندسـیمه کـې د وزارت داخله ډګروال (صلاح الـدین) د چیریکي مجاهـدینو لـه خوا ووژل شو. ٠٢-٠٣-٢٠١٤

**کابل** : **سروبي کې په پوسته برید، ۲عسکر ووژل شول**

د کابل ولایت دسروبي ولسوالۍ په اوزبین سیمه کې د اجیـري اردو پوسـته د مجاهـدینو تـر بریـد لانـدي راغلـه،د بریـد لـه امله ۲عسکر تپیان شـول او د پوسـتې ودانۍ هـم زیانمنـه شـوه. ٠٢-٠٣-٢٠١٤

## سروبي کې ماین ټانګ او ۴ یرغلګر له منځه یوړل

د کابل ولایت دسروبي ولسوالۍ په جګدلک شـین کنـډو سـیمه کې د یرغلګرو عسکرو پـه زغـروال ټانګ درنـه چاودنـه وشـوه، چاودني ټانګ په بشپړه توګه ویجاړ کړ او ۴تنه عسکر یې پکې ووژل.٠٥-٠٣-٢٠١٤

## سروبي کې د دښمن په قوه برید ترسره شو

دکابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په جګدلک سیمه کې د دښـمن په قوه وسلوال برید ترسره شو،د برید له امله دښـمن تـه تلفـات واوښـتل خـو داوښـتو تلفـاتو پـه هکلـه دقیـق معلومـات نـه دي ترلاسه شوي. ٠٦-٠٣-٢٠١٤

## سروبي کې په موټر چاودني ۵عسکر ووژل

دکابل ولایت د سروبي ولسوالۍ په اوزبین سیمه کې د اجیري اردو رینجر موټر په مـاین والـوزول شـو،په چاودنـه کـې مـوټر ویجاړ او پکې ناست ۵تنه عسکر ووژل شول. ٠٦-٠٣-٢٠١٤

## سروبي کې له دښمن سره نښته شوې

د کابل ولایت دسروبي ولسوالۍ پـه جګـدلک مـراد بیـک سـیمه کې د ګوډاګي اداري لـه عسکرو سـره درنـه نښـته وشـوه چـې پـه مهال یې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ٠٧-٠٣-٢٠١٤

## په کابل کې امریکایانو ته د اکمالاتو ټیکه دار ووژل شو

دکابل ښار په دشـتي برچـي سیمه کې امریکـایي عسکرو تـه د اکمـالاتو ټیکـه دار (انجینـر زرغـون) د غلچکـي بریـد پـه مهـال ووژل شو. ٠٧-٠٣-٢٠١٤

## بګرامي کې ۲ټانکر وسوزول شول

د کابل ولایت دبګرامي ولسوالۍ دچرخاب سـیمي عزیزهوټـک پمپ ته نژدې دښمن ته د لیږد پـه کـاروان بریـد ترسـره شـو،د برید په مهال ۲ټانکر مـوټر وویشـتل شـول او پـه بشـپړه توګـه وسوزېدل. ٠٧-٠٣-٢٠١٤

## سروبي کې په پوسته بریدو شو

دکابل ولایت دسروبي ولسوالۍ په شیرخاني سیمه کې د جـلال اباد د عمومي سرک تـر څنـګ د دښـمن پوسـته د مجاهـدینو تـر برید لاندي راغله،د برید له امله دښمن ته زیـان واوښـت امـا پـه اړه یې شواهد نه دي ترلاسه شوي. ١٤-٠٣-٢٠١٤

## سروبي کې په پوسته برید ترسره شو

د کابل ولایت دسروبي ولسوالۍ په شنیلي سیمه کې د دښـمن په پوسته وسلوال برید ترسره شو،د بریـد لـه املـه دښـمن تـه تلفات واوښتل اما په هکلـه یـې شـواهد نـه دي ترلاسـه شـوي. ١٥-٠٣-٢٠١٤

## ده سبز کې ماین ۱۵شغالګروته مرګ ژوبله واړوله

د کابل ولایت د ده سبز ولسوالۍ د پلچرخي پلیګون تعلیمـي میدان کې په پلیو خارجي عسکرو درنه چاودنه وشوه چې له امله یې ۵عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ١٧-٠٣-٢٠١٤

## دکابل د سرینا هوټل په فدایي بریدونو کې ۲۲ دښمنان قتل او ۳ ۱تنه ټپیان شول

د کابل ښار ارګ ته څېرمه د سیرینا هوټل تـه لـه عقبي دروازې څخه څلور تنه فدایي مجاهـدین ( صـدیق الله معـاذ، ظهـورالله، حافظ آغامحمد حیدري او عبدالله ) ننوتل او هلته یې د یرغلګرو هېوادواړونـد مهـم کسـان، د کابـل اداري یـو شـمیر چـارواکي او وکـیلان تـر سـختو بریـدونو لانـدي راوسـتل،برید کونکي مجاهدین په هوټل کې په دوو برخو تقیسم شول، چې دښـمن

یې له ټولو خواوو محاصره او عملیات یې پیل کړل، ګڼ اطاقونه یې تلاشي کړل، مهم کسان یې په کې تشخیص او تر برید لاندې راوستل،دعملیاتو په مهال د کابل ادارې له امنیتي کسانو سره هم درنه نښته رامنځته شوه، دعملیاتو په ترڅ کې ټول ټال ۲۲ تنه بهرني او کورني دښمنان قتل، ۱۳ تنه ټپیان شول او عملیات د وروستي مجاهد په شهادت سره پای ته ورسیدل . اناالله وانااليه راجعون ۲۱-۰۳-۲۰۱۴

**د سرینا هوټل په برید کې د پارلمان دټپي شوي غړی حالت نازک ښودل شوی**

د کابل په زړه کې په سرینا هوټل باندې د مجاهدینو له خوا د برید په مهال د پارلمان غړی وکیل حبیب افغان سخت ټپي شوی و، نوموړی له ټپي کېدو وروسته هند ته د تداوي په موخه انتقال شوا او اوس یې روغتیایي وضعیت خورا نازک ښودل شوی دی. ۲۳-۰۳-۲۰۱۴

**کابل کې فدایي بریدونو لسګونه انتخاباتي او امنیتي کسان مړه اوژوبل کړل**

د کابل ښار د دارالامان سیمې اړوند دکابل ولایت لپاره د انتخاباتي کمیسیون په ریاست د ۳ تنو اتلو فدایي مجاهدینو له لوري فدایي بریدونه تر سره شو،بریدونه دفدایي مجاهد(عبدالرازق قیس ) په فدایي برید پیل شول چې د یاد مرکز ساتونکي او ګڼ شمیر عسکر یې ووژل او ټول امنیتي موانع یې له منځه یوړل، وروسته دوه تنه فدایان هر یو ( ملا عبدالمجید شبیر او ملا محب الله وقار ) د انتخاباتو د ولایتي کمیسیون ریاست ته ننوتل اودټاکنیز کمیسون کارمندان او عسکر یې تر کاري بریدونو لاندې ونیول، په جګړه کې دیاد کمیسیون ۲۴ تنه کار کونکي او ۲۱ تنه امنیتي کسان مړه او ګڼ نور ټپیان شول، داستشهادي مجاهدینودا شپږ ساعتیزه خونړۍ جګړه دوروستي فدایي مجاهد په شهادت سره پای ته ورسېدل. اناالله وانااليه راجعون. ۲۵-۰۳-۲۰۱۴

**کابل کې د امریکا سفارت په توغندیوو ویشتل شو**

د کابل ولایت په زړه کې مجاهدینو له خاص تکتیک نه په کار اخیستلو د امریکا سفارت په ۲ توغندیو په دقیق ډول وویشت ،د برید له امله دښمن ته مالي او ځاني تلفات واوښتل اما په هکله یې شواهد نه دي تر لاسه شوي. ۲۷-۰۳-۲۰۱۴

**کابل کې په بهرني میلمستون او کلیسا فدایي بریدونه تر سره شول**

د کابل ولایت دشپږمې حوزې مربوط په کارته سه سیمه کې په هغه کلیسا فدایي بریدونه وشول چې افغانان یې د عیسویت منسوخ دین ته دعوتول ، برید د ۴ تنو فدایي مجاهدینو لخوا ترسره شو، لومړی قهرمان فدایي مجاهد( محمدزمان) د موټر په وسیله د کلیسا امنیتي کمربند دړي وړې کړ او ۳ نور فدایي مجاهدین (ذبیح الله ،محمد اسماعیل او عبیدالله) د کلیسا ودانۍ ته ننوتل او په کې ټول اوسیدونکي یې تر بریدونو لاندې ونیول،په دغه څه کم ۵ ساعته جګړه کې په کلیسا کې دننه ګڼ شمیر عیسویت ته دعوت کونکي امریکایان اود هغوي بهرني مېلمانه ووژل شول، وروسته له غلامو عسکرو سره جګړې دوام وکړ او ګڼ شمیر یې ورڅخه قتل او ټپیان کړل.۲۸-۰۳-۲۰۱۴

**د جعلي انتخاباتو د کمیسیون لوی ریاست تر فدایي بریدونو لاندې راغی**

دکابل ښار په نهمه حوزه پکتیا کوټ سیمه کې د استشهادي مجاهدینو درې کسیز زړورګروپ (ملامحمد قاسم حافظ قدرت الله او محمداقبال) دکابل ادارې د جعلي ټاکنو د کمیسیون په عمومي مرکزي دفتر استشهادي بریدونه تر سره کړل،استشهادي مجاهدینو له پلان سره سم، لمړی د انتخاباتو د کمیسیون دمرکزي دروازې سره جوخت او په لمړني امنیتي کمربند کې واقع یوه درې پوړیزه ودانۍ چې د ګل اغاشیرزي په کمپاین پورې یې اړه درلوده اوله یاد کمیسیون سره یې کم تر کمه سل متره واټن درلود ددوتنو پیره دارنو له وژلو وروسته ،ترخپل واک لاندې راوسته، مجاهدینو له دې ځایه د عمومي کمیسیون په پنځو کمربندونو کې په ولاړو داخلي او نیپالي ګډو

عسکرو، د کميسيون د نقليه وسايطو په داخل او خارجي پارکينګونو، د کميسيون درئيس، کمشنرانو او بهرنيو مشاورينو په دفترونو، د کميسيون په دارالانشاء او مطبوعاتي څانګه او د کميسيون د حساسو اسنادو پر ډيپوګانو له درنو وسلو په استفادې پراخ بريدونه وکړل، دبريدونو له امله د کميسيون محوطې په داخل کې لس ځايه اور ولګيد چې ورسره د کميسيون اړوند مهم اسناد، دانتخاباتو ليپاره دلازمي توکو ډيپوګان، اړوندې ودانۍ، د کميسيون مربوط لوي او واړه نقليه وسائط، ټول کاملا له منځه لاړل ،په بريدونو کې په لسهاوو بهرني او کورني عسکر مړه او په لسګونو نور ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۹

**ده سبزولسوالۍ ودانۍ تر بريد لاندې راغله**

د کابل ولايت د ده سبز ولسوالۍ په ودانۍ د سپکو او درنو وسلو بريد تر سر شو، د بريد له امله ودانۍ ته زيان واوښت خو د مرګ ژوبلې کره شمېره د شپې د تيارې له کبله نه ده څرګنده شوې. ۳۰-۰۳-۲۰۱۴

**د پلچرخي فرقه په توغنديو وويشتل شوه**

د کابل ښار اړوند د پلچرخي په فرقه ۲ توغندي وتوغول شول چې په ټاکلي هدف ولګېدل. د بريد له امله دښمن ته اوښتي زيان په اړه دقيق معلومات نشته. ۳۰-۰۳-۲۰۱۴

**کابل کې د امريکايي قومندان سکرتره او دجاسوسي ادارې کارمنده ووژل شوه**

د کابل ولايت د ښار اړوند شپېرمې حوزې دکارته سه علاوالدين سيمې ته نژدې امين پلازې ته څېرمه د امريکايي قومندان سکرتره او د جاسوسي ادارې کارمنده (نرګس) په غلچکي بريد کې ووژل شوه . ۳۱-۰۳-۲۰۱۴

## غـــزنـــی

**غزني مرکزته څېرمه ماين يو عسکر وواژه**

دغزني ولايت مرکز ته نژدې په ګنج سيمه کې د اجيري اردو په ګزمه چاودنه وشوه چې له امله يې ۱ عسکر ووژل شو او بل سخت ټپي شو. ۰۱-۰۳-۲۰۱۴

**غزني مرکزته نژدې ۳ عسکر ووژل شول**

دغزني ولايت مرکز ته نژدې په خشک سيمه کې د اجيري اردو ۳ تنه عسکر د چريکي بريد په مهال ووژل شول. ۲۰۱۴-۰۲-۰۳

**واغظ کې د ترافيکي پېښې له امله ۵ ير غلګر وته مرګ ژوبله واوښته**

دغزني ولايت د واغظ ولسوالۍ په کابلو سيمه کې د يرغلګرو عسکرو زغروال ټانګ کندې ته وغورځېدو چې له امله يې ۱ عسکر ځای په ځای ووژل شواو ۴ نور ژوبل شول، په پېښه کې ټانګ هم تخريب شو. ۰۲-۰۳-۲۰۱۴

**د شلګر ولسوالۍ ودانۍ په هشتاددوو ويشتل شوه**

دغزني ولايت د شلګر ولسوالۍ ودانۍ د هشتاددو تر بريد لاندې راغله، د بريد له امله دښمن ته تلفات واوښتل اما د اوښتو تلفاتو په هکله شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۰۲-۰۳-۲۰۱۴

**غزني مرکزته څېرمه د ډاکټر عبدالله په کمپاينرانو چاودنه وشوه**

دغزني ولايت دمرکز اړوند په حکيم صاحب زيارت سيمه کې د ډاکټر عبدالله د کمپاين کونکو په موټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې يو فلډر موټر تخريب او ٦ تنو ته مرګ ژوبله واوښته. ۰۵-۰۳-۲۰۱۴

**غزني مرکزته نژدې د پوليسو په ګزمه بريدوشو**

دغزني ولايت مرکز ته نژدې په قلعه قاضي سيمه کې د پوليسو په پلي ګزمه وسلوال بريد ترسره شو چې په مهال يې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۰٦-۰۳-۲۰۱۴

**ګيلان کې په پوسته بريد، ۳ اربکيان ووژل شول**

دغزني ولايت د ګيلان ولسوالۍ د اغوجان په سيمه کې د شريرو اربکيانو له خوا نوې جوړه شوې پوسته د مجاهدينو تر بريد

لاندي راغله، د برید له امله ۳ اربکیان ووژل شول او د پوستي ودانۍ زیانمنه شوه، مجاهدینو په پوسته کې یو شمېر وسلې اومهمات د غنیمت په توګه ترلاسه کړل. په جګړه کې یو مجاهد سرسرکي ټپي شو. ۰۶-۰۳-۲۰۱۴

**شلګر کې پوسته تر برید لاندي راغله**

دغزني ولایت د شلګر ولسوالۍ په چنګاه سیمه کې د پولیسو په پوسته وسلوال برید ترسره شو چې په ترڅ کې یې دښمن ته تلفات واوښتل. ۰۷-۰۳-۲۰۱۴

**غزني مرکزته څېرمه ماین د ۲ عسکرو ژوندواخیست**

دغزني ولایت مرکزته نژدې په نیازو سیمه کې داجیري اردو په پلې ګزمه چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ عسکر ووژل شول، وروسته په نورو عسکرو برید ترسره شو چې په مهال یې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۰۹-۰۳-۲۰۱۴

**ده یک کې په برید کې ۲ عسکر ټپیان شول**

د غزني ولایت د ده یک ولسوالۍ د ذاکر په سیمه کې د اجیري اردو په ګزمه برید ترسره شو، د برید په مهال ۲ عسکر ټپیان شول او نور په تېښته بریالي شول. ۱۰-۰۳-۲۰۱۴

**اب بند کې د ګډدښمن په عسکرو بریدوشو**

د غزني ولایت داب بند ولسوالۍ په ساق سیمه کې د ګډ دښمن په قوه په داسي حال کې وسلوال برید پیل شو چې ګیرو ولسوالۍ ته په لاره وه، د برید په مهال یو رینجر موټر تخریب او په دې سربېره عسکروته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۱۱-۰۳-۲۰۱۴

**مقر کې اربکیانو ملاامام شهید کړ**

د غزني ولایت د مقر ولسوالۍ په چمبرانو کلی کې اربکیانو د مولوي صاحب نجیب الله په کور چاپه ووهله، دچاپې په مهال اربکیانومولوي صاحب په وهلو له کوره وایست او بیا یې په خوار وحشت سره په شهادت ورساوه، اناالله وانا الیه راجعون. ۱۲-۰۳-۲۰۱۴

**ګیرو کې اشغالګرو ملاامام بندي کړ**

د غزني ولایت د ګیرو ولسوالۍ په شیخو کلي باندي اشغالګرو عسکرو چاپه ووهله، اشغالګرو په کورونو کې له وحشیانه تالاشي وروسته د کلي ملا امام شمس الله له ځان سره یووړ. ۱۲-۰۳-۲۰۱۴

**شلګر کې په ټانګ چاودني ٦ عسکر ووژل**

د غزني ولایت د شلګر ولسوالۍ په نانې سیمه کې د اجیري اردو د ګزمې زغروال ټانګ په ماین والوزل شو، په چاودنه کې ټانګ پوره تخریب شو او پکې ناست ٦ تنه عسکر ووژل شول، وروسته په نورو عسکرو هم وسلوال برید ترسره شو چې له امله یې ددښمن عکسرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۱۳-۰۳-۲۰۱۴

**غزني مرکزته نژدې په انتخاباتي کمپاینرانو چاونه شوې**

دغزني ولایت مرکز ته نژدې په علي لالا سیمه کې د سیاف د انتخاباتي کمپاین په کمپاین کونکو چاودنه وشوه، د چاودني له امله د اوښتي مرګ ژوبلي په اړه معلومات نه دي ترلاسه شوي خو کمپاین کونکي له سیمي په بیړه وتښتېدل. ۱۴-۰۳-۲۰۱۴

**شلګر کې ۲ اربکیان مجاهدینو سره یو ځای شول**

د غزني ولایت په شلګر ولسوالۍ کې ۲ اربکیان مومن خان او احمد د جلب او جذب کمیسیون د دعوت او سیمه ییزو مجاهدینو د هڅو په برکت له مجاهدینو سره یو ځای شول. ۱۴-۰۳-۲۰۱۴

**غزني مرکزته نژدې په برید او چاودنه کې ۱ ټانګ او ٦ عسکر له منځه لاړل**

دغزني ولایت مرکز ته څېرمه په قلعه قاضي سیمه کې د اجیري اردو په عسکرو وسلوال برید ترسره شو چې په مهال یې ۲ عسکر مړه او ۳ نور مرګوني ټپیان شول، کله چې عسکر له سیمي نه د تښتېدو په حال کې وو یو زغروال ټانګ یې دماین ښکار شو، چاودني ټانګ ویجاړ کړ، ۴ تنه عسکر مړه او ۲ ژوبل کړل. ۱۲-۰۳-۲۰۱۴

**د غزني په مرکزي سیمه کې پولیس ووژل شو**

د غزني ولایت مرکزته نژدې په جباروالو سیمه کې په پولیسو غلچکي بریدترسره شوچې په ترڅ کې یې یوتن پولیس مړ او بل سخت ژوبل شو. ۱۶-۰۳-۲۰۱۴

**غزني مرکزته نژدې ۳ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته**

د غزني ولایت مرکز ته نژدې په خاک غریبا سیمه کې د پولیسو پلې ګزمه تر برید لاندې راغله، د برید په مهال ۱ پولیس ووژل شو او ۲ نور مرګوني ټپیان شول. ۱۸-۰۳-۲۰۱۴

**مقر کې د برید په مهال ۱ عسکر ووژل شو**

د غزني ولایت د مقر ولسوالۍ په لړمه سیمه کې د اربکیانو په ګزمه برید ترسره شو، په برید کې یو اربکی ووژل شو او بل سخت ژوبل شو. ۱۸-۰۳-۲۰۱۴

**شلګر کې ماین د ۳ عسکرو ژوند واخیست**

د غزني ولایت د شلګر ولسوالۍ په ناني سیمه کې د اجیري اردو په پلې ګزمه د ماین چاودنه وشوه چې له امله یې ۳ تنه عسکر مړه او ګڼ نور عسکر ټپیان شول. ۱۸-۰۳-۲۰۱۴

**غزني کې چاودني د استخباراتو مدیر او ۲ ساتونکي ووژل**

د غزني ولایت په مرکزي سیمه کې دامنیت د ریاست دروازې ته نژدې د ریموټ کنټرول ماین په توسط د دغه ولایت د استخباراتو مدیر (ظاهر) له خپلو ۲ ساتونکو عسکرو سره ووژل شو او ۴ نور استخباراتي کارمندان مرګوني ټپیان شول. ۱۹-۰۳-۲۰۱۴

**مقر کې ٦ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

دغزني ولایت د مقر ولسوالۍ په لړمه سیمه کې د اجیري اردو، پولیسو او اربکیانو په ګډه عملیاتي قوه وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۳ عسکر مړه ، ۳ نور مرګوني ټپیان شول، په دې سربېره یو شمېر موټر تخریب شول. ۱۹-۰۳-۲۰۱۴

**واغظ کې ۲ اربکیان مجاهدینو سره یو ځای شول**

د غزني ولایت په واغظ ولسوالۍ کې دوه اربکیان (نصرالله او عبدالعلیم) د جلب او جذب کمیسیون د دعوت او سیمه ییزو مجاهدینو د هڅو په برکت له مجاهدینو سره یو ځای شو. ۱۹-۰۳-۲۰۱۴

**ګیلان کې په موټر چاودني قومندان کبیر او ٦ عسکر ووژل**

د غزني ولایت د ګېلان ولسوالۍ کې په لطیف سیمه کې د اجیري اردو د پوستې رینجر موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې د قومندان کبیر په شمول ٦ تنه عسکر ووژل شول او موټر په بشپړه توګه ویجاړ شو. ۱۹-۰۳-۲۰۱۴

**ده یک کې د اجیري اردو په ګزمه بریدوشو**

د غزني ولایت د ده یک ولسوالۍ د ده یک په سیمه کې د اجیري اردو په ګزمه وسلوال برید تر سره شو، د برید په ترڅ کې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته خو کره شمېره یې نه ده څرګنده شوې. ۲۰-۰۳-۲۰۱۴

**ګیلان کې ماین ټانګ او ۵ امریکایي عسکر له منځه یوړل**

د غزني ولایت د ګیلان ولسوالۍ شینکي کلي ته امریکایي عسکر د چاپې وهلو په موخه راغلي وو چې په شاه مقصود کلا کې یې یو زغروال ټانګ د چاودني ښکار شو، چاودني ټانګ ویجاړ کړ او پکې ناست عسکر یې ۵ تنه ځای په ځای ووژل. ۲۰-۰۳-۲۰۱۴

**غزني مرکزته څېرمه په موټر چاودني ۵ عسکر ووژل**

د غزني ولایت مرکز ته نژدې په روضه سیمه کې د اجیري اردو کروزین ډوله موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټر بشپړ له منځه لاړ او ۵ تنه عسکر پکې ووژل شول. ۲۱-۰۳-۲۰۱۴

**شلګر کې په برید کې یو عسکر ووژل شو**

د غزني ولایت د شلګر ولسوالۍ په بسانه سیمه کې د اجیري اردو په ګزمه د برید په مهال یو عسکر مړ او ګڼ نور ژوبل شول. ۲۳-۰۳-۲۰۱۴

**غزني مرکزته څېرمه ۵ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته**

د غزني ولايت دمركز اړونده په زرگرو سيمه كې د پوليسو په سراچه موټر بريد ترسره شو، دبريد په مهال ۲ پوليسو خپل ژوند له لاسه وركړ او ۳ نور مرگوني ټپيان شول، په دې سربېره موټر هم پوره تخريب شو. ۲۴-۰۳-۲۰۱۴

**قره باغ كې ۱ موټر تخريب او ۴ عسكر ووژل شول**

د غزني ولايت د قرباغ ولسوالۍ په موسى والو سيمه كې د اجيري اردو په گزمه وسلوال بريد ترسره شو، په بريد كې ۴ عسكرو خپل ژوند له لاسه وركړ او ۲ نور مرگوني ټپيان شول، په بريد كې يو عراده رينجر موټر تخريب شو. ۲۰۱۴-۰۳-۲۴

**شلگر كې ۱ ټانک، ۱ موټر تخريب او ٦ عسكر ووژل شول**

د غزني ولايت د شلگر ولسوالۍ د ناني په سيمه كې د اجيري اردو په موټريزه گزمه وسلوال بريد ترسره شو، دبريد په ترڅ كې ٦ تنه عسكر مړه او ۹ نور يې سخت ژوبل شول، له دې علاوه ۱ زغروال ټانک او ۱ عراده رينجر موټر پوره تخريب شو. ۲۰۱۴-۰۳-۲۵

**شلگر كې په قرارگاه بريد، ۵ عسكرو ته مرگ ژوبله واوښته**

د غزني ولايت دشلگر ولسوالۍ په سيني سيمه كې د دښمن په قرارگاه وسلوال بريد ترسره شو، په بريد كې ۱ عسكر ووژل شو او ۴ نور مرگوني ټپيان شول، په دې سربېره د قرارگاه ودانۍ هم زيانمنه شوه، د جگړې په پای كې د دښمن عسكرو فراز كلا او عطامحمد كلي دهاوانونو تر ناتار ډزولاندي راوستل چې له امله يې په عطامحمد كلي كې د عبدالأحد په نوم يو تن كليوال ټپي شو. ۲٦-۰۳-۲۰۱۴

**گيلان كې په پوسته بريد، ۲ اربكيان ووژل شول**

د غزني ولايت دگيلان ولسوالۍ په اغوجان سيمه كې د اربكيانو پوسته د مجاهدينو تر بريد لاندې راغله، د بريد په مهال ۲ اربكيان ووژل شول او په دې سربېره د پوستې ودانۍ زيانمنه شوه. ۲۷-۰۳-۲۰۱۴

**د استخباراتو درياست په مخكې چاودنو ۹ عسكر او كارمندان ووژل**

د غزني ولايت په مركز كې د استخباراتو د رياست په مخكې د دغې ادارې په كارمندانو چاودنه وشوه چې له امله يې د يادې ادارې ۲ تنه كارمندان ووژل شول، كله چې سيمې ته د ادارې اړوند كسان او اجيره اردو راغله يوه بله قوي چاودنه پېښه وشوه، دغې چاودنې ۷ تنه مړه او ۱۰ نور يې ژوبل كړل. ۲۷-۰۳-۲۰۱۴

**غزني كې د انتخاباتو د ادارې كارمند ووژل شو**

د غزني ولايت په مركزي سيمه كې د انتخاباتو د ادارې مامور احمدشاه د چړيكي بريد په ترڅ كې د مجاهدينو له خوا ووژل شو او توپانچه يې غنيمت شوه. ۲۷-۰۳-۲۰۱۴

**شلگر كې اشغالگرو ۱۰ ملكي وگړي بنديان كړل**

د غزني ولايت د شلگر ولسوالۍ په ليوانو كلي باندې اشغالگرو عسكرو دعامو خلكو په كورونو چاپه ووهله او له بې رحمانه تلاشي اوخلكو ته تر مالي زيانونو اړولو وروسته يې ۱۰ تنه كليوال له ځان سره يووړل. ۲۷-۰۳-۲۰۱۴

**شلگر كې په كاروان بريد، ۵ پوليس مړه او ژوبل شول**

د غزني ولايت دشلگر ولسوالۍ په ناني سيمه كې په اكمالاتي كاروان وسلوال بريد تر سره شو، دبريد په مهال ۲ پوليس ووژل شول او ۳ نور مرگوني ټپيان شول، په دې سربېره يو عراده موټر هم تخريب شو. ۲۷-۰۳-۲۰۱۴

**گيلان كې د اربكيانو په پوسته بريد وشو**

دغزني ولايت د گيلان ولسوالۍ په شينكي سيمه كې داربكيانو پوسته د مجاهدينو تر بريد لاندې راغله، د بريد له امله دښمن ته داوښتي زيان په اړه دقيق معلومات نشته. ۲۸-۰۳-۲۰۱۴

**گيلان كې ماين اربكى قومندان حضرت بلال ووژه**

د غزني ولايت د گيلان ولسوالۍ په ازاد سيمه كې داربكى قومندان حضرت بلال په رينجر موټر دماين چاودنه وشوه، په چاودنه كې

موټر پوره له منځه لاړ، حضرت بلال ژوند له لاسه ورکړ او ۲ نور اربکیان مرګوني ټپیان شول. ۲۹-۰۳-۲۰۱۴

**شلګر کې د برید په مهال ۲ اربکیان ژوبل شول**

د غزني ولایت د شلګر ولسوالۍ په سرکي سیمه کې په اربکیانو وسلوال برید ترسره شو چې په مهال یې ۲ اربکیان ژوبل شول او نور په تېښته بریالي شول. ۳۰-۰۳-۲۰۱۴

**غزني مرکزته نژدې په موټر چاودنې ۳ پولیس ووژل**

د غزني ولایت مرکز ته نژدې په خشک سیمه کې د پولیسو رېنجر موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټر پوره تخریب، ۳ تنه پولیس مړه او ۴ مرګوني ټپیان شول. ۳۰-۰۳-۲۰۱۴

**شلګر کې په ۲ پوستو بریدونه وشول**

دغزني ولایت د شلګر ولسوالۍ په کوټه سنګي سیمه کې د اجیري اردو په پوسته وسلوال بریدترسره شو چې په ترڅ کې یې ۱ عسکر ووژل شو، دغه راز په محکم سیمه کې د اربکیانو پوسته تر برید لاندې راغله، په برید کې اربکیانو ته مرګ ژوبله واوښته خو کره شمېره یې نه ده څرګنده شوې. ۳۰-۰۳-۲۰۱۴

**قره باغ کې په پوسته برید، ۴ اربکیان ووژل شول**

د غزني ولایت د قره باغ ولسوالۍ په حمزه خېلو سیمه کې د اربکیانو په پوسته وسلوال برید ترسره شو،دبریدپه مهال ۴ تنه اربکیان ووژل شول او ۳ نور مرګوني ټپیان شول، په وژل شویو کې د پوستې د قوماندان معاون رسول خان هم شامل دی. ۳۱-۰۳-۲۰۱۴

**قره باغ کې په ټانک چاودنې ۲ عسکر ووژل**

د غزني ولایت د قره باغ ولسوالۍ په مشکي سیمه کې د اجیري اردو په زغروال ټانک د ماین چاودنه وشوه، په چاودنه کې ټانک پوره ویجاړ، ۲ تنه عسکر ووژل شول او ٦ تنه نور عسکر مرګوني ټپیان شول. ۳۱-۰۳-۲۰۱۴

**ده یک کې ماین اربکی قومندان او ۵ اربکیان ووژل**

دغزني ولایت د ده یک ولسوالۍ په رباط سیمه کې د اربکي قومندان عبدالرحمن رینجر موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټر له منځه لاړ او قومندان عبدالرحمن او ۵ تنه اربکیان مړه او ۲ نور مرګوني ټپیان شول. ۳۱-۰۳-۲۰۱۴

## میـــدان وردک

**چک کې په پوسته برید، ۳ عسکر ووژل شول**

دمیدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ مرکزته نژدې د دښمن په پوسته د دهشکي برید ترسره شو، په برید کې ۳ عسکر ووژل شول او ګڼ نور ټپیان شول. ۰۱-۰۳-۲۰۱۴

**سیدابادکې د برید په مهال ۲ عسکر ووژل شول**

د میدان وردګ ولایت د سیدآباد ولسوالۍ داونخي درې په یاویز سیمه کې داجیري اردو او اربکیانو په ګډه ګزمه وسلوال برید ترسره شوچې په مهال یې ۲ عسکر ووژل شول او ګڼ نور ټپیان شول، له جګړې وروسته د دښمن عسکرو په سیمه کې ۲ موټرسایکل وسوزول او له سیمې وتښتېدل. ۰۹-۰۳-۲۰۱۴

**سیدآباد کې د بې پیلوټه الوتکي په برید کې عام وګړی شهید شو**

د میدان وردګ ولایت د سیدآباد ولسوالۍ د شنیز درې په یوسف خېلو سیمه کې د بې پیلوټه الوتکې په برید کې یو عام کلیوال په شهادت ورسید، اناالله وانااليه راجعون. ۱۲-۰۳-۲۰۱۴

**سیدآباد کې په موټر چاودنې ۳ پولیس ووژل**

د میدان وردګ ولایت دسیدآباد ولسوالۍ په هفت اسیا سیمه کې په اصطلاح د نظم عامه پولیسو په رینجر موټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې ۳ تنه پولیس مړه او ۳ نور پولیس مرګوني ټپیان شول، چاودني موټر هم پوره تخریب کړ. ۱۵-۰۳-۲۰۱۴

**سیدآباد کې چاودنې ټانک او ۴ یرغلګر له منځه یوړل**

د میدان وردګ ولایت د سیدآباد ولسوالۍ په شابي سیمه کې د بهرنیو سپیشل فورس عسکرو زغروال ټانک په ماین والوزول

شو، په چاودنه کې ټانک پورتخریب او ۴ عسکر یکې ووژل شول ۱۸-۰۳-۲۰۱۴

**نرخ کې په ډیپو کې چاودني زیان واړاوه**

د میدان وردګ ولایت د نرخ ولسوالۍ په ودانۍ کې د ننه د وسلې په ډیپو کې د مجاهدینو له خوا د خاص تکتیک له مخې ځای په ځای شوی ماین وچاودېد .له چاودني سره سم په ډیپو کې اور بل شو او ټول مهمات یکې له منځه لاړل. ۲۰-۰۳-۲۰۱۴

**سیدابادکې دګډدښمن عسکرو ۱۰موټرسایکل وسوزول**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ په دندو کې کلي د ګډ دښمن عسکرو د عامو خلکو په کورونو چاپې ووهلې او د وحشي تلاشي په مهال یې دیوتن سپینږیری کلیوال حاجي ګل په ګوون ګڼ شمیر خلک سخت ووهل،عسکرو د کلیوالو ۱۰ موټرسایکل وسوزول او ګڼ نور یې تخریب کړل. ۲۰-۰۳-۲۰۱۴

**چک کې داجیري اردو په عسکرو برید وشو**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ په ګل دانو سیمه کې د اجیري اردو په عسکرو وسلوال بریدتر سره شو، په برید کې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته او په پای کې له سیمې په تېښته بریالي شول. ۲۰-۰۳-۲۰۱۴

**چک کې د دښمن په عسکرو برید وشو**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ په ګلدانو سیمه کې د اجیري اردو په عسکرو وسلوال برید ترسره شو چې په مهال یې دښمن ته درنه مرګ ژوبله اومالي زیان واوښت. ۲۱-۰۳-۲۰۱۴

**سیدابادکې یو پولیس ووژل شو**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ په اوتړیو سیمه کې یو تن پولیس خپلي پوستي ته نژدې د غلچکي برید په مهال ووژل شو. ۲۱-۰۳-۲۰۱۴

**میدان وردګ: چک کې کاروان تر برید لاندي راغی**

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ په لنګر سیمه کې داجیري اردو په کاروان وسلوال برید ترسره شو چې په مهال یې دښمن ته د سر او مال درروند زیان واوښت. ۲۲-۰۳-۲۰۱۴

**سیداباد: په موټر چاودني ۴ پولیس ووژل**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ په هفت اسیا سیمه کې په اصطلاح د نظم عامه پولیسو په رینجر موټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټر ویجاړ، ۴ تنه پولیس مړه او یو۱ پولیس سخت ژوبل شو. ۲۳-۰۳-۲۰۱۴

**سیداباد : په پولیسو بریدمرګ ژوبله واړوله**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ په سالارو سیمه کې د نظم عامه په پولیسو وسلوال برید ترسره شو، د برید په مهال پولیسو ته درنه مرګ ژوبله واوښته خو کره شمیره یې نه ده څرګنده شوې. ۲۵-۰۳-۲۰۱۴

**سیداباد : چاودني د جاسوسي اداري ۵ کارمندان مړه او ژوبل کړل**

د میدان وردګ ولایت دسیداباد ولسوالۍ د هفت اسیا په ازادخېلو سیمه کې د جاسوسي اداري د کارمندانو موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټر تخریب او د یادي اداري ۵ تنوکار کونکو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۵-۰۳-۲۰۱۴

**میدان وردګ: جلریز کې اربکی ووژل شو**

د میدان وردګ ولایت د جلریز ولسوالۍ په زیولات سیمه کې یو اربکی د پوستې په مخکې وویشتل شو او ځای په ځای ووژل شو. ۲۵-۰۳-۲۰۱۴

**سیداباد کې ۳ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته**

د میدان وردګ ولایت دسیداباد ولسوالۍ په لوړه سیمه کې د نظم عامه پولیسو په ګزمه برید ترسره شو، په برید کې ۱ پولیس ووژل شو او ۲ نور سخت ژوبل شول. ۲۶-۰۳-۲۰۱۴

**سیداباد کې د دښمن په ګزمه برید وشو**

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ په سلطان خېلو سیمه کې د جاسوسي اداري په کارمندانو وسلوال برید تر سره

شـو،دبرید په مهـال یـو مـوټر تخریـب شـو او د یـادې ادارې کارمندانو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۷-۰۳-۲۰۱۴

### سیداباد کې اشغالګرود عامو خلکو ۱ موټر او ۳ موټر سایکل وسوزول

د میدان وردګ ولایت په باغک سیمه کې د هادي خېلو په کلي کـې اشـغالګرو عسـکرو دعـامو خلکـو پـه کورونـو چاپـه ووهله،عسکرو د تالاشي په مهال د عبدالمالک دوکاندار کرولا موټر او محمداکرم، ثناګل او سیداکبر ۳ موټرسایکلونه وسوزول او د ګڼو نورو یې په ډزو تخریب کړل.عسکرو د کلي خلک سخت ووهل او هغوی یې تهدید کړل. ۲۷-۰۳-۲۰۱۴

### سیداباد: چاودنو ۱ټانک او ۵ پولیس له منځه یوړل

د میدان وردګ ولایت د سیداباد ولسوالۍ د هفت اسیا په ازادخېلو سیمه کې په اصطلاح د نظم عامه پولیسو په ګزمه دچاودني لـه املـه ۱ پـولیس ووژل شـو، دغـه راز پـه همـدې سیمه کې دګوډلو پمپ ته نژدې یو زغروال ټانګ پـه مـاین والـوزول شـو، چـاودني ټانـک ویجـاړ ،او یکـې ناسـت ۴ تنـه پولیس ووژل. ۲۷-۰۳-۲۰۱۴

### چک کې د اجیري اردو په ګزمو بریدونه وشول

د میدان وردګ ولایت دچک ولسوالۍ په ظریف او لنګر سیمو کې داجیـري اردو پـه ګزمـو وسلوال بریدونـه ترسـره شـول،په بریدونو کې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښـته امـا کـره شمېره یې نه ده څرګنده شوې. ۲۸-۰۳-۲۰۱۴

### نرخ کې له دښمن سره نښته کې ۳ پولیس ووژل شول

د میدان وردګ ولایت د نرخ ولسوالۍ په تیتمورسیمه کې له اجیري اردو او پولیسو سره درنه نښته وشوه،په برید کې ۳ تنو پولیسو خپـل ژوند لـه لاسه ورکـړ او ګـڼ نـور ټپیـان شول. ۲۸-۰۳-۲۰۱۴

### چک کې په ګزمه ماین وچاودېد

د میـدان وردګ ولایـت دچـک ولسـوالۍ پـه لنګـر سیمه کـې د اجیري اردو پـه پلـې ګزمـه درنـه چاودنـه وشـوه چـې لـه املـه یـې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۸-۰۳-۲۰۱۴

### چک کې ۳ عسکروته مرګ ژوبله واوښته

د میدان وردګ ولایت د چک ولسوالۍ پـه خلیلـي سیمه کـې د اجیري اردو په ګزمـه وسلوال بریـد ترسـره شـو،دبرید په مهال ۱ عسکر ووژل شو او ۲ ژوبل شول. ۳۰-۰۳-۲۰۱۴

### نرخ کې ماین د ۳ عسکرو ژوند واخیست

د میدان وردګ ولایـت د نـرخ ولسـوالۍ مرکزتـه نژدې داجیـري اردو په پلې ګزمه کې د ښخ کړل شوي ماین چاودنې ۳ تنـه عسـکر مړه او ۲ نور عسکر سخت ژوبل کړل. ۳۰-۰۳-۲۰۱۴

### سیداباد کې ۴ پولنډي عسکروته مرګ ژوبله واوښته

د میـدان وردګ ولایـت د سـیداباد ولسـوالۍ پـه عزیـز کلا سیمه کـې دبهرینـو عسـکرو ګزمـه دمجاهـدینو پـه کمـین کیوتــه او تــر ســخت بریــد لانــدې راغلــه ،د بریــد پــه مهـال ۲ پولنـډي عسکرو خپـل ژونـد لـه لاسـه ورکـړ ۲ نـور مرګوني ټپیان شول . ۳۱-۰۳-۲۰۱۴

## لـــوګـــر

### لوګر کې د اشغالګرو بمبار ۴ ملکیان شهیدان کړل

دلوګر ولایت مرکز پل علم ته نژدې په نیازیو کلا باندې داشغالګرو عسکرو له خوا بمبار وشو، دبمبار له امله ۲ نارینه او ۲ ښځې شهیدانې شـوې او ۲ ماشـومان تـر دې مهالـه نادرکـه دي،پـه بمـار کـې د کلیوالو ۳ کورونه وران شول. ۰۲-۰۳-۲۰۱۴

### لوګر کې ۱ موټر ویجاړ او ٦ اربکیان ووژل شول

د لوګر ولایت مرکز پل علم ته نژدې په نامظرو سیمه کې د وسلوال بریـد پـه مهال ٦ تنـه اربکیـان ووژل شـول پـه بریـد کې ۱ عـراده رینجـر مـوټر هـم پـه بشپړه توګـه ویجـاړ شـو. ۰٦-۰۳-۲۰۱۴

**لوګر کې امریکایانو د کابل اداري په مزدورو عسکرو بمبار وکړ ۱۷ تنو ته یې مرګ ژوبله واړوله**

دلوګر ولایت په څرخ ولسوالۍ کې امریکایي عسکرو د مزدورو عسکرو دغره په نامه پوسته باندې درنه بمباري وکړه، په برید کې د مزدورو عسکرو پوسته په بشپړه توګه ویجاړه شوه او په کې میشت ۱۰ تنه عسکر مړه او ۷ نور مرګوني ټپیان شول. ۰۲-۰۳-۲۰۱۴

**برکي برک کې ۲ اربکیان ووژل شول**

د لوګر ولایت دبرکي برک ولسوالۍ په چهارای سیمه کې په اربکیانو وسلوال برید ترسره شو، د برید په مهال ۲ اربکیانو خپل ژوند له لاسه ورکړ او یو ګڼ شمېر نور شدید ټپیان شول. ۰۲-۰۳-۲۰۱۴

**لوګر کې چاودنې د جاسوسي اداري ۳ کارمندانو ته مرګ ژوبله واړوله**

د لوګر ولایت مرکز پل علم ته نژدې په بیات سیمه کې د جاسوسي اداري په کارمندانو چاودنه وشوه، چاودنې ۱ تن وواژه او ۲ یې مرګوني ټپیان کړل. ۱۰-۰۳-۲۰۱۴

**لوګر مرکز ته نژدې په پوسته کې چاودنې ۲ پولیس ووژل**

د لوګر ولایت مرکز پل علم ته نژدې په وزیر کلا سیمه کې د پولیسو په پوسته کې د ننه چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ پولیس مړه او د پوستې ودانۍ تخریب شوه. ۱۳-۰۳-۲۰۱۴

**لوګر مرکز ته څېرمه چاودنې د ۳ پولیسو ژوندواخیست**

د لوګر ولایت مرکز ته نژدې په خدر سیمه کې کمپاین ته نژدې د ښخ کړل شوي ماین چاودنې د ګوداګۍ اداري ۳ تنه پولیس مړه او یو بل سخت ژوبل شو. ۱۳-۰۳-۲۰۱۴

**څرخ کې ماین موټر او ۵ عسکر له منځه یوړل**

د لوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ په خواجګانو سیمه کې هدیرې ته نژدې د اجیري اردو په موټر د ماین چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټر ویجاړ او ۵ تنه عسکر ووژل شول. ۱۳-۰۳-۲۰۱۴

**لوګر مرکز ته څېرمه له ګډ دښمن سره جګړه وشوه**

د لوګر ولایت مرکز پل علم ته نژدې سیمه کې له ګډ دښمن سره درنه جګړه وشوه، په جګړه کې دښمن ته درانه مالي او ځاني تلفات واوښتل او په پای کې په تېښته بریالي شول. ۱۲-۰۳-۲۰۱۴

**برکي برک کې ماین ۱ عسکر وواژه**

د لوګر ولایت د برکي برک ولسوالۍ په برکي راجان سیمه کې د ښخ کړل شوي ماین چاودنې ۱ عسکر مړ او یو بل عسکر مرګوني ټپي کړ. ۱۷-۰۳-۲۰۱۴

**برکي برک کې ماین ۲ اربکیان ټپیان کړل**

د لوګر ولایت د برکي برک ولسوالۍ په برکي راجان سیمه کې د اربکیانو په پلې ګزمه د ماین چاودنه وشوه چې له امله یې ۲ اربکیان ټپیان شول. ۱۸-۰۳-۲۰۱۴

**لوګر مرکز ته نژدې ۲ بهرني عسکر ووژل شو**

د لوګر ولایت مرکز ته نژدې په پادخواب سیمه کې داشغالګرو عسکرو ګزمه تر وسلوال برید لاندې راغله، دبرید په مهال ۲ بهرنیو عسکرو خپل ژوند له لاسه ورکړ او ګڼ نور عسکر ټپیان شول. ۱۹-۰۳-۲۰۱۴

**لوګر کې د خپلمنځي نښتې په مهال ۲ اربکیان ووژل شول**

د لوګر ولایت مرکز پل علم ته نژدې سیمه کې د اربکیانو تر منځ نښته وشوه، په نښته کې ۲ تنه اربکیان (نورالدین او محمدجان) ووژل شول او ګڼ نور ټپیان شول، په جګړه کې ۲ ملکي وګړي هم ټپیان شول. د جګړې په پای کې سیمې ته عسکر راغلل او د سبز علي ۳ تنه اربکیان یې له ځان سره د بندیانو په توګه بوتلل. ۱۹-۰۳-۲۰۱۴

**برکي برک کې چاودنه او برید کې قومندان او ۲ عسکر ووژل شول**

د لوګر ولایت د برکي برک ولسوالۍ په چنو سیمه کې د اجیري اردو په ګزمه د ماین چاودنه او په چاراهي سیمه کې د

اربکیانو په ګزمه برید ترسره شو، په پېښنو کې اربکي قومندان زمري او ۲ عسکر ووژل شول او ۴ نور مرګوني ټپیان شول. ۱۹-۰۳-۲۰۱۴

**لوګر مرکزته څېرمه په کاروان بریدوشو**

د لوګر ولایت مرکزته نژدې په ډیري سیمه کې د دښمن په هغه کاروان برید ترسره شوچې څرخ ولسوالۍ ته په لاره وو، دبرید په مهال دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته خو شمېره یې نه ده تر لاسه شوې. ۲۱-۰۳-۲۰۱۴

**څرخ کې په کاروان برید، ۲ عسکر ووژل شو**

د لوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ اړوند د شش کلا په سیمه کې د اجیري اردو په موټریز کاروان وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۲ عسکر ووژل شول او ۳ نور سخت ژوبل شول. ۲۱-۰۳-۲۰۱۴

**خروار کې په ګزمه برید ترسره شو**

د لوګر ولایت د خروار ولسوالۍ د خاني کلا په سیمه کې د اجیري اردو په ګزمه وسلوال برید ترسره شوچې په مهال یې دښمن ته درنه مرګ ژوبله واوښته. ۲۲-۰۳-۲۰۱۴

**څرخ کې ۳ عسکروته مرګ ژوبله واوښته**

د لوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ په شش کلا سیمه کې د اجیري اردو په قطار برید ترسره شو، په برید کې ۱ عسکر ووژل شو او ۲ نور مرګوني ټپیان شول. ۲۲-۰۳-۲۰۱۴

**لوګر مرکزته نژدې په پوسته بریدوشو**

د لوګر ولایت مرکز پل علم ته نژدې په مؤمن کلا سیمه کې د اجیري اردو پوسته د مجاهدینو تر برید لاندي راغله، د برید په مهال د پوستې په مخکې په عسکرو دوه درنې چاودنې هم وشوې. په پېښنو کې دښمن ته مرګ ژوبله واوښته خو دتیارۍ له امله یې کره شمېره نه ده څرګنده شوې. ۲۳-۰۳-۲۰۱۴

**محمداغه کې ۴ عسکروته مرګ ژوبله واوښته**

د لوګر ولایت د محمداغه ولسوالۍ په آب پران پاچه سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۲ عسکر مړه او ۲ نور مرګوني ټپیان شول. ۲۴-۰۳-۲۰۱۴

**څرخ ولسوالۍ په ودانۍ برید، ۵ عسکر ووژل شول**

د لوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ په ودانۍ د سپکو او درنو وسلو برید ترسره شو، په برید کې ۵ تنه عسکر مړه او ۷ تنه نور عسکر سخت ژوبل شول، په دې سربېره د ولسوالۍ ودانۍ هم پوره تخریب شوه، د دښمن په متقابلو ناتار ډزو کې ۳ ملکیان ټپیان شول. ۲۵-۰۳-۲۰۱۴

**لوګر مرکزته نژدې په جګړه کې ۱ عسکر ووژل شو**

د لوګر ولایت مرکز ته نژدې په پادخواب سیمه کې د اجیري اردو له عسکرو سره جګړه ترسره شوه، په جګړه کې ۱ عسکر ووژل شو او نور په تېښته بریالي شول. ۲۵-۰۳-۲۰۱۴

**څرخ کې د ګډ دښمن ۵ عسکر ووژل شول**

د لوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ په ورسنک سیمه کې د ګډ دښمن په ګزمه وسلوال برید تر سره شو، دبرید په ترڅ کې ۵ تنه عسکر ووژل شو او یو ګڼ شمېر نور ټپیان شول. ۲۶-۰۳-۲۰۱۴

**څرخ ولسوالۍ ودانۍ تر برید لاندي راغله**

د لوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ په ودانۍ وسلوال برید ترسره شو، د برید له امله د ودانۍ یو برج تخریب شو او د مرګ ژوبلې کره شمېره نه ده څرګنده شوې. ۲۶-۰۳-۲۰۱۴

**لوګر مرکزته څېرمه ماین ۱ عسکر وواژه**

د لوګر ولایت مرکز پل علم ته نژدې په پادخواب سیمه کې د اخوندبابا دغونډۍ په سر د اجیري اردو په ګزمه درنه چاودنه وشوه، چاودنې ۱ عسکر وواژه او ګڼ نور یې ژوبل کړل. ۲۶-۰۳-۲۰۱۴

**څرخ کې ۷ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ**

دلوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ په چاربرجه سیمه کې د اجیري اردو په قطار وسلوال برید تر سره شو، د اوږدمهالي جګړې په

ترخ کې ۷ تنه عسکر مړه ، ګڼ نور ټپیان شول او زیات شمېر موټر یې هم زیانمن شول، د جګړې په پای کې د دښمن عسکرو په سیمه کې شاوخوا ډزې پیل کړې چې له امله یې۱ زنانه شهیده او ۸ نور کلیوال چې ماشومان او سپینږیري هم پکې دي، ټپیان شول. ۲۷-۰۳-۲۰۱۴

**څرخ کې ۱ټانک، ۱موټر تخریب او ۳ عسکر ووژل شول**

د لوګر ولایت دڅرخ ولسوالۍ شش کلا ته نژدې په چاربرجه سیمه کې د اجیري اردو د موټریز کاروان یو زغروال ټانګ په ماین والوزول شو او په پوره ډول تخریب شو، وروسته په نور کاروان وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۳ عسکر و خپل ژوند له لاسه ورکړ او ګڼ نور ژوبل شول، په دې سربېره یو عراده رینجر موټر تخریب شو. ۲۸-۰۳-۲۰۱۴

**څرخ کې ۴ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ**

د لوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ په بندوکي سیمه کې د ګوډاګیو عسکرو په کاروان وسلوال برید تر سره شو، په برید کې د۴ عسکرو په وژل کېدو سربېره ګڼ نور ټپیان شول. ۲۸-۰۳-۲۰۱۴

**څرخ کې ۹ عسکرو ژوند له لاسه ورکړ**

د لوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ دبندوکي په خواجه علي سیمه کې دګوډاګیو عسکرو پلې ګزمه تر وسلوال برید لاندې راغله، دبرید په مهال ۹ عسکرو خپل ژوند له لاسه ورکړ او ۱۳ تنه نور یې مرګوني ټپیان شول، د جګړې په پای کې د دښمن عسکرو په سیمه کې ناتار ډزې پیل کړې چې له امله یې ۱۳ تنه ملکي وګړي چې زنانه او ماشومان هم پکې شامل دي ټپیان شول. ۲۹-۰۳-۲۰۱۴

**څرخ کې د برید په مهال ۲ عسکر ټپیان شول**

د لوګر ولایت د څرخ ولسوالۍ په خواجه علي کلي کې د اجیري اردو په ګزمه وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۲ عسکر ټپیان شول او نور په تېښته بریالي شول. ۳۰-۰۳-۲۰۱۴

**لوګر مرکز ته نژدې چاودنې ۱ عسکر ووژل**

د لوګر ولایت مرکز ته نژدې پل علم ته نژدې په اخندانو سیمه کې دګوډاګیو عسکرو په پلې ګزمه د ماین چاودنه وشوه چې له امله یې ۱ عسکر ووژل شو. ۳۱-۰۳-۲۰۱۴

## خوست

**علي شیرو کې د جاسوسي اداري کارمند ووژل شو**

د خوست ولایت دعلي شیرو ولسوالۍ په تورو اوبو سیمه کې د جاسوسي اداري یو تن کارکونکی چې عبدالرحمن نومېږي د چریکي برید په مهال ووژل شو. ۰۲-۰۳-۲۰۱۴

**خوست مرکز ته څېرمه د دښمن موټر په ماین والوت**

دخوست ولایت مرکز ته نژدې د لکڼو ډیري سیمه کې د چټک غبرګون د عسکرو په رینجر موټر درنه چاودنه وشوه، دچاودنې له امله موټر پوره تخریب او پکې ناستو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۰۲-۰۳-۲۰۱۴

**باک کې ماین ۳ پولیسو ته مرګ ژوبله واړوله**

د خوست ولایت دباک ولسوالۍ په کوټکي سیمه کې دپولیسو په پلې ګزمه د چاودنې له امله ۱ پولیس ووژل شو او ۲ مرګوني ټپیان شول. ۰۳-۰۳-۲۰۱۴

**صبري یو کې په موټر چاودنې ۱ عسکر وواژه**

د خوست ولایت د صبري یو ولسوالۍ په سروبي سیمه کې د اجیري اردو په رینجر موټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټر تخریب، ۱ عسکر ووژل شو او ۱ عسکر ټپي شو. ۰۵-۰۳-۲۰۱۴

**موسی خېلو کې ماین یو عسکر وواژه**

د خوست ولایت د موسی خېلو ولسوالۍ په خجیري سیمه کې د اجیري اردو په پلې ګزمه د ښخ کړل شوي ماین چاودنې ۱ عسکر مړ او یو شمېر نور عسکر ژوبل کړل. ۰۷-۰۳-۲۰۱۴

**باک کې ماین ۳ عسکر مړه او ژوبل کړل**

د خوست ولایت د باک ولسوالۍ په کوټکي سیمه کې د اجیري اردو په پلي ګزمه د ځمکني ماین چاودني ۱ عسکر وواژه او ۲ یې مرګوني ټپیان شول. ۰۹-۰۳-۲۰۱۴

**صبریو کې په کمپاین برید ترسره شو**

د خوست ولایت د صبریو ولسوالۍ په خلبسات سیمه کې د دښمن کمپاین د هاوان په ۱۱، د هشتاددو په ۲ او د هفتاد پنج په ۵ مرمیو دقیق وویشتل شو، د برید له امله د کمپاین په منځ کې اور ولګېدخو د دښمن د تلفاتو په هکله شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۱۳-۰۳-۲۰۱۴

**خوست مرکزته نژدې په موټر چاودني ۵ عسکر ووژل**

د خوست ولایت مرکز ته نژدې په توپچي سیمه کې د اجیري اردو د ګزمې په رېنجر موټر د ماین چاودني د اجیري اردو ۵ تنه عسکر ووژل او ۲ نور عسکر یې سخت ژوبل کړل، چاودني موټر هم پوره تخریب کړ. ۱۳-۰۳-۲۰۱۴

**خوست مرکزته څېرمه لاسي بم برید ۲ پولیس ووژل**

د خوست ولایت د مرکز اړوند په بلند منزلو سیمه کې د پولیسو په موټر د لاسي بم برید ترسره شو، دبرید له امله ۲ پولیس ووژل شول، ۳ مرګوني ټپیان شول او موټر پوره تخریب شو. ۱۹-۰۳-۲۰۱۴

**علي شیرو کې ماین ۳ پولیسوته مرګ ژوبله واړوله**

د خوست ولایت دعلي شیرو ولسوالۍ په تورو اوبو سیمه کې د سرحدي پولیسو په ګزمه چاودنه وشوه، دچاودني له امله ۱ پولیس ووژل شو او ۲ پولیس سخت ژوبل شول. ۱۹-۰۳-۲۰۱۴

**علي شیرو کې پوسته په میزایلو وویشتل شوه**

د خوست ولایت د علي شیرو ولسوالۍ په ګورګوري سیمه کې د دښمن پوسته په ۳ میزایلو دقیق وویشتل شوه، د برید له امله دښمن ته زیان واوښت اما په هکله یې شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۱۹-۰۳-۲۰۱۴

**نادر شاه کوټ کې په ګزمه بریدو شو**

د خوست ولایت د نادرشاه کوټ ولسوالۍ په هجروم سیمه کې د پولیسو په ګزمه برید ترسره شو. په برید کې یو رینجر موټر تخریب شو خو پولیسو ته د اوښتي مرګ ژوبلي کره شمېره نه ده څرګنده شوې. ۱۹-۰۳-۲۰۱۴

**سپېره ولسوالۍ کې کمپاین په هاوان وویشتل شو**

د خوست ولایت د سپېره ولسوالۍ په میچنه سیمه کې د دښمن کمپاین د هاوان په ۸ مرمیو دقیق وویشتل شو، د برید له امله دښمن ته تلفات واوښتل اما په اړه یې شواهد نه دي ترلاسه شوي. ۲۲-۰۳-۲۰۱۴

**شیخ امیر کې کمپاین په درنو وسلو وویشتل شو**

د خوست ولایت د شیخ امیر ولسوالۍ په ترخوبي سیمه کې د دښمن کمپاین د هاوان په ۴ او د هشتاددو په ۳ مرمیو دقیق وویشتل شو، په برید کې د کمپاین ودانۍ زیانمنه شوه خو د مرګ ژوبلي کره شمېره نه ده څرګنده شوې. ۲۲-۰۳-۲۰۱۴

**شیخ امیر کې ماین د ۲ عسکرو ژوند واخیست**

د خوست ولایت د شیخ امیر ولسوالۍ په مشي کنډو سیمه کې د اجیري اردو په پلې ګزمه درنه چاودنه وشوه، په چاودنه کې ۲ عسکر ووژل شول او ۳ نور مرګوني ټپیان شول. ۲۳-۰۳-۲۰۱۴

**علي شیرو کې کمپاین فتحه او ګڼ شمېر وسلې او مهمات غنیمت شول**

د خوست ولایت د علي شیرو ولسوالۍ په چرګوټي سیمه کې د دښمن لوی مشهور کمپاین د مجاهدینو تر تعرضي برید لاندي راغي، دبرید په مهال کمپاین فتحه او په بشپړه توګه یې وسوزول شو، په کمپاین کې مجاهدینو ۲ رېنجر او ۱ کرولا موټر، ۱ زغروال ټانګ، ۱ زیکویک او ۷ موټران له وسلو ډک غنیمت کړل او خوندي ځای ته یې انتقال کړل. په غنیمت شویو وسلو او مهماتو کې ۳ موټرسایکل، ۳ میله پیکا او ۳ بکسې مرمۍ یې، ۳ دهشکې، ۱ راکټ لانچر او ۷ مرمۍ یې، ۱ سپیجنین او ۲۰ مرمۍ یې، ۱ نارنجک او ۱۲ مرمۍ

يې، ۲ توپانچې، ۱ مخابره، ۱ هاوان او ۲۰ مرمۍ يې او دغه راز ګڼ نور مهمات شامل دي، په جګړه کې ۲ مجاهدين د شهادت لوړ مقام ته ورسېدل او ۴ ټپيان شول، انا لله وانا اليه راجعون. ۲۵-۰۳-۲۰۱۴

**دوومندو کې ۱ موټر تخريب او ۲ عسکر ووژل شول**

د خوست ولايت د دوو مندو ولسوالۍ په شوی خوړ سيمه کې د اجيري اردو په ګزمه وسلوال بريد ترسره شو، دبريد په مهال ۲ عسکر ووژل شول او ۳ نور مرګوني ټپيان شول، په دې سربېره يو عراده رينجر موټر هم تخريب شو. ۲۶-۰۳-۲۰۱۴

**خوست کې په پوسته فدايي بريد دروندزيان واړاوه**

د خوست ولايت مرکز ته نژدې په منګلو سيمه کې د ګوډاګۍ ادارې د عسکرو په پوسته د فدايي مجاهد يوسف بغلاني له خوا د پلينکوچ موټر په توسط فدايي بريد ترسره شو، دبريد له امله پوسته په مکمل ډول ويجاړه او پکې مېشتو ګڼو عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته، له دې علاوه ګڼ نقليه وسائط هم پکې له منځه لاړل. ۲۶-۰۳-۲۰۱۴

**علي شيرو کې چاودنې ۳ پوليس مړه او ژوبل کړل**

د خوست ولايت دعلي شيرو ولسوالۍ په تورو اوبو سيمه کې د ګوډاګۍ ادارې د پوليسو په ګزمه درنه چاودنه وشوه، په چاودنه کې ۱ پوليس ووژل شو او ۲ نور سخت ژوبل شول. ۲۷-۰۳-۲۰۱۴

**صبريو کې ماين پوليس وواژه**

د خوست ولايت د صبريو ولسوالۍ مرکز ته نژدې په پياده پوليسو د ښخ کړل شوي ماين چاودني يوتن پوليس وواژه او ګڼ نور پوليس يې ژوبل کړل. ۲۸-۰۳-۲۰۱۴

**نادرشاه کوټ ولسوالۍ ودانۍ تر بريد لاندې راغله**

د خوست ولايت د نادرشاه کوټ ولسوالۍ په ودانۍ د سپکو او درنو وسلو بريد ترسره شو، په بريد کې دښمن ته د اوښتو تلفاتو په هکله شواهد نه دي تر لاسه شوي. ۳۰-۰۳-۲۰۱۴

**خوست مرکزته څېرمه ماين د ۳ عسکرو ژوندواخيست**

د خوست مرکز ته نژدې په لکنو سيمه کې د ښخ کړل شوي ماين چاودني د اجيري اردو ۳ تنه عسکر مړه او ۴ نور عسکر مرګوني ټپيان کړل. ۳۰-۰۳-۲۰۱۴

**درګۍ کې ماين د ۲ پوليسو ژوند واخيست**

د خوست ولايت د درګۍ ولسوالۍ په شين ګوني سيمه کې د سرحدي پوليسو په پلې ګزمه د ځاي په ځاى شوي ماين چاودنې ۲ سرحدي پوليس مړه او ۲ نور مرګوني ټپيان کړل. ۳۱-۰۳-۲۰۱۴

**علي شيرو کې چاودنې ۲ پوليس ووژل**

د خوست ولايت د علي شيرو ولسوالۍ په ګور ګوري سيمه کې د ځمکني ماين چاودنې ۲ تنه سرحدي پوليس مړه او يو شمېر نور پوليس ټپيان کړل. ۳۱-۰۳-۲۰۱۴

## پکتيا

**پکتيامرکزته نژدې په موټر چاودنې ۴ عسکر ووژل**

د پکتياولايت مرکز ګرديز ته نژدې په ابراهيم خېلو سيمه کې د اجيري اردو په رينجرموټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټر ويجاړ او ۴ تنه عسکر ووژل شو. ۰۱-۰۳-۲۰۱۴

**ځاځي اريوب کې په ټانګ چاودنې قومندان وواژه**

د پکتيا ولايت دځاځي اريوب ولسوالۍ د ششتي بازار په اړونده سيمه کې د پوليسو په زغروال ټانګ چاودنه وشوه، په چاودنه کې ټانګ پوره ويجاړ، قومندان عمر ووژل شو او دوه تنه ساتونکي پوليس يې مرګوني ټپيان شول. ۰۸-۰۳-۲۰۱۴

**پټان کې د جاسوسي ادارې کارمند ووژل شو**

د پکتيا ولايت دپټان ولسوالۍ په شرف الدين سيمه کې د جاسوسي ادارې کارمند (نيازو) د غلچکي بريد په مهال ووژل شو. ۰۸-۰۳-۲۰۱۴

**په زرمت کې اربکی له مجاهدينو سره يو ځای شو**



## ماتې خبرې

محمدعیسی (امیری)

راځه چې درته وکړم څو خبرې ماتې ماتې
د مات زړګي له تله څو سندرې ماتې ماتې

ځولۍ درسره راوړه اودا پورې غرته راشه
چې ټولې کړو خورې ورې ګورګورې ماتې ماتې

دې هسکه شنه دره کې داو بویخه چینه ده
خولاره کې یې شته لوړې ژورې ماتې ماتې

بازان مو د وطن په سردروباندې ګرځیږي
د ډیرو تېپو سانو دي وزرې ماتې ماتې

زمونږ په خړپړ کلي کې ډیرشوي دي جنګونه
پرتې د رقیبانو دي ککرې ماتې ماتې

په زور چې څوک راغلي بیا ترې روغ وتلي نه دي
ترې پاتې دي نېزې تورې او زغرې ماتې ماتې

غمجن ډیر عرفاني دی چې داخه ورباندې شوي
په سترګو کې یې او ښکې ملغلرې ماتې ماتې

## د زړه آواز

دمرحوم مولوي محمدنبی محمدی شعر

که د قند په شانې خوږ ترخوله ور تیر شوم
هغه خدای آزرده کړی خوشحال نه شو

که په صدق او په صفا ورته تسلیم شوم
هغه زړه چې مکدر وو سمبال نه شو

که به عجز اتو تواضع مې ځان ترې ځار کړ
مګر کبر او غرور یې پایمال نه شو

که په سل قسمه ارزو مې ور پوره کړې
خو د حرص له تقاضا په بل حال نه شو

هی افسوس له دې زمانه له دې عصره
چې په هیڅ طریقه هیڅوک اکمال نه شو

محمدي نور شکایت له هیچا مه کړه
چې خپل نفس دي هم په حقه ګوشمال نه شو

## اضطراري حالات

عرفان الله عرفاني

ليکلی مې بيان دی خو تقرير ته يې وخت نشته
الفاظ يې ډير قاصر دي خو تفسير ته يې وخت نشته

حالات اضطراري دي چاته حال ويلی نشم
يو خوب مې دی ليدلی خو تعبير ته يې وخت نشته

جهاد دی مجاهد بيا دغزا ميدان ته درومي
د کفر سره جنګ دی خو تدبير ته يې وخت نشته

آذان شوی مسجد کې په اول صف کې ولاړ يم
دلمونځ نيت مې تړلی خو تکبير ته يې وخت نشته

په دين باندې شهيد دی زکه پروت ټوټې ټوټې دی
راټول يې کړی څادر کې خو سرير ته يې وخت نشته

راځئ چې له وحشته ټول محکوم اولس آزاد کړو
تلوار کړئ روانيږئ خو تاخير ته يې وخت نشته

وختونه ياري نکړي عرفاني دا انقلاب دی
راغلی مې غزل دی خو تحرير ته يې وخت نشته

## سپېڅلتيا

سيدالهام

له خدای سره دوستي ده سپېڅلتيا
ژوندون کې لا زمي ده سپېڅليتا

ترې ليرې ليري ښوري شيطانان
تقوای ده ديندارې ده سپېڅلتيا

دنيا کې په خوارئ کې سپېڅلتوب
عقبا کې سرداري ده سپېڅلتيا

پخپله دی سپېڅلي انسان نيک
له نيک سره ياري ده سپېڅلتيا

لمونځونه دي روژې دي سراسر
جهاد دی بندګي ده سپېڅلتيا

وفا ده سرتر پايه بس وفا
دا نه چې غداري ده سپېڅلتيا

غرور نه دی الهامه ! پام او پام
زارئ دي خاکساري ده سپېڅلتيا

دپکتیا ولایت د زرمت ولسوالۍ په سهاکو سیمه کې یو اربکی (پیرمحمد) له مجاهدینو سره یو ځای شو او وعده یې وکړه چې نور به خپل عادي ژوند په مخ بیایي. ۰۸-۰۳-۲۰۱۴

**پکتیامرکزته څېرمه ۷ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

د پکتیا ولایت مرکز ګردېز اړوند په شیخانو سیمه کې د اجیري اردو له عسکرو سره خونړۍ جګړه وشوه، په اوږدمهالي نښته کې د اجیري اردو ۳ عسکر و خپل ژوند له لاسه ورکړ او ۴ نور مرګوني ټپیان شول، په جګړه ۱ مجاهد شهید او ۱ ټپي شو، انا لله وانا الیه راجعون. ۱۱-۰۳-۲۰۱۴

**جاني خېلو کې د اشغالګرو نژدې ملګری مجاهدینو سره یو ځای شو**

د پکتیا ولایت په جاني خیلو ولسوالۍ کې دامریکایي عسکرو نژدې ملګری (حضرت خان) د دعوت اوارشاد کمیسیون د دعوت او سیمه ییزو مجاهدینو د هڅو په برکت له مخالفت نه لاس په سر شو چې مجاهدینو یې تود هر کلی وکړ. ۱۴-۰۳-۲۰۱۴

**جاني خېلو کې د اربکیانو موټر په ماین والوت**

د پکتیا ولایت دجاني خېلو ولسوالۍ په سنزیو سیمه کې د اربکیانو رینجر موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټر تخریب اویو اربکی سخت ټپی شو. ۱۵-۰۳-۲۰۱۴

**څمکنو کې چاودني ۲ اربکیان ټپیان کړل**

د پکتیا ولایت د څمکنو ولسوالۍ په لوړه سیمه کې د اربکیانو رینجر موټر په ماین والوزول شو، چاودني موټر تخریب او ۲ اربکیان ټپیان کړل. ۱۲-۰۳-۲۰۱۴

**څمکنو کې اربکی قومندان ملنګی ووژل شو**

د پکتیا ولایت د څمکنو ولسوالۍ په شهرنو سیمه کې د سکه خېلو کلي د اربکیانو قومندان (ملنګي) د چریکي برید په مهال ووژل شو. ۱۹-۰۳-۲۰۱۴

**ځاځي اریوب کې قرارګاه په هاوان وویشتل شوه**

د پکتیا ولایت په ځاځي اریوب ولسوالۍ کې د سرحدي پولیسو قرارګاه د هاوان په ۳ مرمیو دقیق وویشتل شوه، د برید له امله دښمن ته تلفات واوښتل اما په اړه یې شواهد نه دي تر لاسه شوي. ۲۰-۰۳-۲۰۱۴

**ځاځي اریوب کې د اجیري اردو په ګزمه برید وشو**

د پکتیا ولایت د ځاځي اریوب ولسوالۍ د روقیان په سیمه کې د اجیري اردو په ګزمه برید ترسره شو، په برید کې دښمن ته د اوښتي مرګ ژوبلي کره شمېره نه ده څرګنده شوې. ۲۰۱۴-۰۳-۲۰

**څمنکو کې د جاسوسي اداري کرولا موټر وسوزول شو**

د پکتیا ولایت دڅمکنو ولسوالۍ په نرګسي کلي کې د جاسوسي اداري یو کرولا موټر د وسلوال برید په مهال وسوزول شو او د یادي اداري کارمندان په تېښته بریالي شول. ۲۲-۰۳-۲۰۱۴

**پکتیامرکزته څېرمه چاودني ۲ عسکر ووژل شول**

د پکتیا ولایت مرکز ګردېز ته نژدې په رباط سیمه کې د اجیري اردو په رینجر موټر دماین چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټر پوره تخریب، ۲ تنه عسکر مړه او ۲ نور عسکر مرګوني ټپیان شول. ۲۵-۰۳-۲۰۱۴

**زرمت: چاودني ټانګ او ۱۵ امریکایي عسکر له منځه یوړل**

د پکتیا ولایت د زرمت ولسوالۍ په سهاکو سیمه کې د امریکایي عسکرو زغروال ټانګ په ماین والوزول شول، په چاودنه کې ټانګ ویجاړ، او پکې ناست عسکر چې شمېر یې ۵ تنو ته رسېده ووژل شول. ۲۶-۰۳-۲۰۱۴

**په زرمت کې د ګډ دښمن ۵ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

د پکتیا ولایت د زرمت ولسوالۍ په سهاکو سیمه کې د ګډ دښمن په ګزمه وسلوال برید ترسره شو، د برید په مهال ۳ عسکرو خپل ژوند له لاسه ورکړ او ۲ نور سخت ژوبل شول. ۲۶-۰۳-۲۰۱۴

**په زرمت کې د برید په مهال ۳ عسکر ووژل شول**

د پکتیا ولایت د زرمت ولسوالۍ په مقرب خېلو سیمه کې د اجیري اردو په پلې ګزمه د وسلوال برید په مهال ۳ تنه عسکر مړه او ګڼ نور عسکر ټپیان شول. ۲۷-۰۳-۲۰۱۴

**پکتیا مرکزته نژدې د جاسوسي اداري موټر په ماین والوت**

د پکتیا ولایت مرکز ګردېز ته نژدې د خوست په لین د جاسوسي اداري رېنجر موټر په ماین والوزول شول، چاودنې ټانک پوره تخریب او د یادې ادارې ۲ کارمندان یکې ټپیان شول.۳۱-۰۳-۲۰۱۴

**په زرمت کې د اجیري اردو په ګزمه بریدو شو**

د پکتیا ولایت د زرمت ولسوالۍ په مقرب خېلو سیمه کې د اجیري اردو په ګزمه وسلوال برید ترسره شو، د برید په مهال دښمن ته درنه مرګ ژوبله او مالي تلفات واوښتل. ۳۱-۰۳-۲۰۱۴

**پکتیامرکزته څېرمه چاودنې ۴ کمپاینران ووژل**

د پکتیا ولایت مرکز ګردېز ته نژدې په نازیانو کلي کې د ماین چاودنې د فضل حق جیلاني ۴ تنه کمپاین کونکي ووژل او یو شمېر کمپاین کونکي یې ټپیان کړل. ۳۱-۰۳-۲۰۱۴

**د برید په مهال ۹ عسکرو ته مرګ ژوبله واوښته**

د پکتیا ولایت د زرمت ولسوالۍ د مموزو په سیمه کې د اجیري اردو په ګزمه دوه ځله وسلوال بریدونه تر سره شول، د بریدونو په ترڅ کې ۵ عسکر و خپل ژوند له لاسه ورکړ او ۴ نور یې سخت ژوبل شول. ۳۱-۰۳-۲۰۱۴

## پکتیکا

**جاني خېلو کې په موټرچاودنې ۱ پولیس ووژل شو**

د پکتیکا ولایت د جاني خېلو ولسوالۍ په جعفرو سیمه کې د پولیسو د موټرېز کاروان یو موټر په ماین والوزول شو، په چاودنه کې موټرپوره ډول تخریب شو او یو پولیس (لعل جبار) یکې ووژل شو. ۰۳-۰۳-۲۰۱۴

**خوشامند کې پولیس ووژل شو**

**یوسف خېلو کې له مجاهدینو سره پولیس یو ځای شو**

د پکتیکا ولایت دیوسف خېلو ولسوالۍ په مشخېلو کلي کې یو تن پولیس( خان ګل)له مجاهدینو سره یو ځای شو. ۰۳-۰۳-۲۰۱۴

**سرحوضه کې په موټر چاودنې ۳ پولیس وژلي**

د پکتیکا ولایت دسرحوضې ولسوالۍ په شوي کمر سیمه کې د پولیسو په موټر چاودنه وشوه، په چاودنه کې موټر تخریب، ۳ تنه پولیس مړه او ٦ مرګوني ټپیان شول. ۰۴-۰۳-۲۰۱۴

**جاني خېلو کې ګزمه تر برید لاندې راغله**

د پکتیکا ولایت دجاني خېلو ولسوالۍ په بابوخېلو سیمه کې د اربکیانو ګزمه د مجاهدینو تر برید لاندې راغله، په برید کې اربکیانو ته د اوښتي مرګ ژوبلې کره شمېره نه ده څرګنده شوې.۰۸-۰۳-۲۰۱۴

**خیر کوټ کې اربکی ووژل شو**

دپکتیکا ولایت دخیر کوټ ولسوالۍ په سیګانه کلي کې یو اربکی (غازي) ووژل شو.۰۹-۰۳-۲۰۱۴

**شکین کې په ۲ پوستو برید، ۵ عسکر مړه او ژوبل شول**

د پکتیکا ولایت د شکین ولسوالۍ په انګور اډه سیمه کې د اجیري اردو په دوو پوستو برید ترسره شو، د بریدونو له امله د پوستې ودانۍ زیانمنې شوې او په دې سربېره په یوه پوسته کې ۲ عسکر مړه او ۳ ټپیان شول، په بله پوسته کې یو عراده رېنجر موټر پوره تخریب شو. ۱۰-۰۳-۲۰۱۴

**ګومل کې ۵ پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته**

د پکتیکا ولایت د ګومل ولسوالۍ په خرمنزو کلي کې د پولیسو په پلې ګزمه وسلوال برید ترسره شو، په برید کې ۲ پولیسو ژوند له لاسه ورکړ او ۳ نور مرګوني ټپیان شول. ۱۲-۰۳-۲۰۱۴

**اورګون کې ماین د ۱ عسکر ژوند واخیست**

دسیمي اربکیانو په مجاهدینو برید وکړ چې دمجاهدینو دکلک مقاومت له امله یې درې تنه اربکیان ووژل شول، وروسته ګوډاګیوعسکرو په سیمه کې دعامو خلکو یولنډکروزرموټر، یوه سراچه اویوه کرولا اودرې عرادې موټرسایکل وسوزول اویوتن سپین ږیرى کلیوال [محمدګل اکا] یې سخت وواهه او بالاخره ددښمن عسکر له سیمي وتښتېدل. ۲۰۱۴/۳/۲۱

**ښورابک کې په پوسته برید ۳عسکرووژل شول**

دکندهارولایت د شوراوک ولسوالۍ اړوند د چولي مانده په سیمه کې په یوه امنیتي پوسته وسلوال بریدترسره شو چې په ترڅ کې یې درې تنه عسکرووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۲

**خاکریزکې داجیري اردو یوه شوبله دماین ښکارشوه**

دکندهارولایت د خاکریز ولسوالۍ اړوند دملاغبار کلي ته څېرمه داجیري اردوشوبله دماین ښکارشوه،دچاودني له امله شوبله پوره ویجاړه اوپکې ناستو عسکروته مر ګ ژوبله واوښته ۲۰۱۴/۳/۲۲

**خاکریزکې ددښمن په خیمووسلوال بریدترسره شو**

دکندهارولایت د خاکریز ولسوالۍ اړوند د ملاغبار کلي ته څېرمه ددښمن په خیمو وسلوال بریدترسره شو،دبرید په پایله کې خیمو اور واخیست اوپه بشپړه توګه وسوزول شوې خوددښمن دځاني تلفاتودقیقه شمېره نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۴/۳/۲۲

**شاولیکوټ کې داشغالګروزغروال ټانک له منځه لاړ**

دکندهارولایت د شاولیکوټ ولسوالۍ اړوند دشاجوی مانده په سیمه کې داشغالګرو په زغروال ټانک دماین چاودنه وشوه، په چاودنه کې ټانک پوره ویجاړاوپکې ناستو اشغالګروته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۲۲

**تخته پل کې په پوسته برید ۵عسکرووژل شول**

دکندهارولایت د تخته پل ولسوالۍ اړوند د ملیدپه سیمه کې د اجیروعسکرو په امنیتي پوسته وسلوال بریدترسره شو، دبرید په ترڅ کې پنځه تنه عسکر ووژل شول او یوتن مجاهد زخمي شو. ۲۰۱۴/۳/۲۳

**بولدک په غلچکي بریدکې یوعسکرووژل شو**

دکندهارولایت دبولدک ولسوالۍ په وېش سیمه کې یو تن عسکردمجاهدینوله لوري دغلچکي بریدپه ترڅ کې ځای په ځای ووژل شو. ۲۰۱۴/۳/۲۳

**خاکریز کې یوموټرتخریب ۳عسکرپکې ووژل شول**

دکندهارولایت د خاکریز ولسوالۍ اړوند دسیاه سنګ کاریز په سیمه کې داجیري اردو په یوه اکمالاتي موټر وسلوال بریدترسره شو،په برید کې موټر تخریب اوپکې ناست درې تنه عسکر ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۳

**میوندپه مخامخ جګړه کې ۳بهرني ۵عسکرووژل شول**

دکندهارولایت د میوندولسوالۍ اړوند دکوکي دښت په سیمه کې له اشغالګرو او اجیروعسکرو سره خونړۍ جګړه وشوه، په جګړه کې درې تنه بهرني اشغالګر اوپنځه تنه عسکرووژل شول.۲۰۱۴/۳/۲۳

**خاکریز کې یوزغروال ټانک اویوه شوبله له منځه لاړل**

دکندهارولایت دخاکریز ولسوالۍ اړوند د اوو کاریز په سیمه کې د ګډ دښمن یو زغروال ټانک اویوه شوبله د ماینونو ښکار شول، دچاودنوله امله ټانک اوشوبله په بشپړه توګه ویجاړ اوپکې ناستوعسکروته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۲۳

**کندهار ښار کې په رینجرچاودني عسکروته مرګ ژوبله واوړوله**

دکندهارولایت د مرکز کندهارښار دلومړۍ امنیتي حوزې اړوند دشهیدانو څلورلاري ته څېرمه داجیروعسکرو په رینجرموټر دماین چاودنه وشوه،چاودني رینجر پوره ویجاړ اوپکې ناستو عسکروته مرګ ژوبله واړوله. ۲۰۱۴/۳/۲۴

**میوندکې ۱۳شغالګر او ۲عسکرووژل شول**

دکندهارولایت د میوندولسوالۍ اړوند دکوکي دښت په سیمه کې له اشغالګرو اواجیرو عسکرو سره سخته جګړه وشوه، په

جګړه کې ۳ تنه اشغالګر اودوه تنه داجیري اردو عسکر ووژل شول ،وروسته دښمن په سیمه کې څلورتنه عام وګړي ونیول چې دوه تنه یې په خوراوحشت په شهادت ورسول اودوه نوریې زخمیان کړل اوبیایې په زخمي حالت کې له ځان سره دبندیانوپه توګه بوتلل. ۲۰۱۴/۳/۲۴

**میوند کې دقومندان [صابري] په شمول ۴عسکرووژل شول**

دکندهارولایت د میوندولسوالۍ اړوند دسره بغل په سیمه کې د اجیري اردو له عسکرو سره سخته جګړه وشوه،دبریدپه مهال دقومندان [صابري ]په شمول څلورتنه عسکرځای په ځای ووژل شول،وروسته ددښمن عسکروپه سیمه کې دعامو خلکو کورونه په هاوان وویشتل چې په پایله کې یې دیوه کور دوه تنه ماشومان ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۴

**میـــــوند کې ددښمن ۳ شوبلي تخریب شوي**

دکندهارولایت د میوندولسوالۍ اړوند دکلانکیچې سیمي ته په روانو ۳ شوبلو دمجاهدینوله لوري ددهشکي برید ترسره شـو،دبریدپه پایلــه کــې درې واړه شــوبلي تخریــب شــوې خوددښمن دمرګ ژوبلي دقیقه شمېره نه ده څرګنده شوې. ۲۰۱۴/۳/۲۴

**میوند کې ۲نوري شوبلي تخریب ۵عسکرووژل شول**

دکندهارولایت د میوندولسوالۍ دسره بغل دریګې په سیمه کې داجیري اردوپه عسکرو وسلوال بریدترسره شو،په نښته کې دوې شوبلي پوره تخریب او۵تنه عسکرځای په ځای ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۴

**شاولیکوټ کې یورېنجرو یجاړ، ددښمن عسکر تر برید لاندې راغلل**

دکندهارولایت د شاولیکوټ ولسوالۍ اړوند دتناوچې په سیمه کې میانشین ته پرغزیدلي سرک داجیري اردو په رېنجر موټر د ماین چاودنه وشوه،دچاودني له امله رېنجر ویجاړ اوپکې ناستو عسکروته مرګ ژوبله واوښته،وروسته دپېښي ځای ته په راروانو عسکرو وسلوال بریدترسره شو چې په مهال یې یوعسکر ووژل شوا ودرې نور سخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۵

**ارغستان کې قرارګاه په هشتاد ۲وویشتل شوه**

دکندهارولایت دارغستان ولسوالۍ اړوند د سپیني ګاري په سیمه کې داجیري اردو په قرارګاه دهشتاد دو برید ترسره شو،دبریدپه مهال دوې مرمۍ په قرارګاه کې دننه ولګېدې خو پـه بریـد کـې دښـمن تـه داوښـتي زیـان معلومـات نشـته. ۲۰۱۴/۳/۲۶

**پنجوایي کې یو عسکر له مجاهدینو سره یوځای شو**

دکنـدهارولایت دپنجـوایي ولسـوالۍ پـه مربوطـاتو کې یـوتن عســکر[عبــدالخالق ]دجلــب اوجــذب کمیســیون پــه هلوځلوسره دحقائق درک کړل اوددښمن له صف نه رابېل شو. ۲۰۱۴/۳/۲۶

**میوندکې ددښمن په ټانک اوپلي عسکرو چاودني وشوې**

دکندهارولایت د میوندولسوالۍ اړونددبندتیمور دمکتب په سیمه کې دګډدښمن پـه ټانـک اوپلیـو عسکرو درې چاودني وشوې، په چاودنو کې ټانک ویجاړ اوپکې ناستو عسکرو او دغه راز پیاده عسکروته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۲۶

**میوندکې یوتن عسکرپه مخامخ برید کې ووژل شو**

دکندهارولایت د میوندولسوالۍ اړوند دخاک چوپان په سیمه کې په اجیروعسکرو وسلوال بریدترسره شو،دبریدپه پایله کې یوتن عسکر ووژل شواو نور په تېښته بریالي شول.۲۰۱۴/۳/۲۶

**میوندد کمین په برید کې یوعسکرووژل شو**

دکندهارولایت د میوندولسوالۍ اړوند دشنه سړک دکاریزک په سیمه کې داجیري اردو یوتن عسکرووژل شو. ۲۰۱۴/۳/۲۶

**معروف په بریدونو کې ۵عسکروته مرګ ژوبله واوښته**

دکندهارولایت د معروف ولسوالۍ اړونداسحاقزو سیمي تـه ګڼ شمیر اجیر سرحدي عسکر دعملیاتوپه موخه راووتل چې دمجاهدینو له وسلوال بریدسره مخ شول، په برید کې درې تنه عسکر مړه اودوه نورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۸

**میوندپه جګړه کې ددښمن یوه شوبله ویجاړه شوه**

دکندهارولایت د میوندولسوالۍ اړونددکوکي دښت په سیمه کې دمزدوري اردو له عسکرو سره سخته جګړه وشوه، په جګړه کې ددښمن یوه شوبله ددهشکي په توسط تخریب اوپکې ناستو عسکروته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۲۸

**میوند دنارنجک بریدکې ۲عسکرووژل شول**

دکندهارولایت د میوندولسوالۍ اړوند دشنه سرک په سیمه کې داجیري اردو په پلیو عسکرو دنارنجک بریدترسره شو چې له امله یې دوه تنه عسکر ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۸

**خاکریزکې په ګوډاګیو عسکرووسلوال بریدترسره شو**

دکندهارولایت د خاکریز ولسوالۍ اړوند دباغکي په سیمه کې داجیري اردو په عسکرو وسلوال بریدترسره شو، دبریدپه پایله کې دښمن ته تلفات واوښتل خودقیقه شمېره یې نه ده څرګنده شوې. ۲۰۱۴/۳/۲۹

**بولدک کې رینجر تخریب ۳عسکر قتل ۴ژوبل شول**

دکندهارولایت د بولدک ولسوالۍ اړوند دلوی کاریز په سیمه کې په اجیروسرحدي عسکرو دماین چاودنه وشوه، وروسته دپېښې ځای ته نورعسکر راروان ووچې یوبل ماین پرې وچاودېد، دچاودنوله امله رینجر ویجاړ اوپکې ناست درې تنه عسکر مړه اوڅلورنور سخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۳۰

**شاولیکوټ کې په مخامخ جګړه کې یوه شوبله تخریب شوه**

دکندهارولایت د شاولیکوټ ولسوالۍ اړوند دکجورپه سیمه کې له اجیر دښمن سره سخته جګړه وشوه، په جګړه کې ددښمن یوه شوبله تخریب اوپکې ناستو عسکروته مرګ ژوبله واوښته ۲۰۱۴/۳/۳۰

**میوندکې په ګزمه برید ۲عسکرووژل شول**

دکندهارولایت د میوندولسوالۍاړونددمندوزو په سیمه کې داجیري اردو په پلي ګزمه وسلوال بریدترسره شو، دبرید په مهال دوه تنه عسکر مړه اوپاتي نوریې په تېښته بریالي شول. ۲۰۱۴/۳/۳۰

**میوندکې دګوډاګیو عسکرورینجر موټر دماین ښکار شو**

د کندهار ولایت د میوند ولسوالۍ اړوند دبندتیمور په سیمه کې داجیري اردو یو رینجر موټر په ماین والوزول شو، دچاودني له امله رینجر ویجاړ اوپکې ناستو عسکروته مرګ ژوبله واوښته .۲۰۱۴/۳/۳۰

**شاولیکوټ کې ۴عسکروته مرګ ژوبله واوښته**

دکندهارولایت د شاولیکوټ ولسوالۍ اړوند د ولې په سیمه کې څلوروتنو ګوډاګیو عسکرو ته هغه مهال مرګ ژوبله واوښته چې غوښتل یې دمجاهدینوله لوري یوخښ شوی ماین شنډکړي .۲۰۱۴/۳/۳۱

**میانشین کې په ګوډاګیو عسکرو وسلوال بریدترسره شو**

دکندهارولایت د میانشین ولسوالۍ اړوند دسیدحسان په سیمه کې په ګوډاګیو عسکرو وسلوال بریدترسره شو، دبرید په ترخ کې دښمن له لږ مقاومت وروسته دتلفاتوپه لیدلو سره له سیمې نه پښې سپکې کړي. ۲۰۱۴/۳/۳۱

**دمیوندولسوالۍ ودانۍ په هفتاد پنج وویشتل شوه**

دکندهارولایت د میوندولسوالۍودانۍ دمجاهدینوله لوري په هفتاد پنچ وویشتل شوه، په پېښه کې دښمن ته تلفات واوښتل خودقیقه شمېره یې نه ده څرګنده شوې. ۲۰۱۴/۳/۳۱

**میوندکې داربکیانورینجر موټر دماین ښکارشو**

دکندهارولایت دمیوندولسوالۍد مرکز اړونددپوستو په برابر داربکیانو یورینجر موټر دماین ښکارشو، دبریدپه پایله کې ددښمن رینجر په بشپړه توګه ویجاړ اوپکې ناستواربکیانوته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۳۱

**میوندپه وسلوال بریدکې دوه عسکرووژل شول**

دکندهارولایت د میوندولسوالۍ اړوند دمندوزوپه سیمه کې داجیري اردو په پلې ګزمه وسلوال بریدترسره شوچې په ترڅ کې یې دوه تنه عسکر ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۳۱

## هلمند

### لشکرګاه کې له اشغالګروسره سخته جګړه وشوه

دهلمندولایت د مرکزلشکرګاه اودګرشک ولسوالۍ دنهرسراج ترمابین دخاورین پله په سیمه کې له اشغالګروسره سخته جګړه وشوه، په جګړه کې دښمن ته تلفات واوښتل خودقیقه شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۴/۳/۱

### نادعلي کې دیرغلګرو ۲زغروال ټانکونه له منځه لاړل

دهلمندولایت د نادعلي ولسوالۍ اړوند دلوی مانده او دماتکي په سیمو کې داشغالګرو دوه زغروال ټانکونه په ماینونو والوزول شول ، دچاودنولـه املـه دواړه ټانکونه ویجاړ ،درې تنه اشغالګرمړه اودوه نورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۱

### سنګین په وسلوال برید کې ۳پولیس قتل ۱ژوبل شو

دهلمندولایت دسنګین ولسوالۍ اړوند دچرخکیانو مانده ته نژدې دګارو په سیمه کې دپولیسو په پلې ګزمه وسلوال بریدترسره شو،په برید کې درې تنه پولیس مړه اویوبل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۱

### مارجه په جګړه کې ددښمن ۵تنه قتل ۳ژوبل شول

دهلمندولایت د مارجې ولسوالۍ اړوند دترخه ناور په سیمه کې له اجیردښمن سره سخته جګړه وشوه، په جګړه کې پنځه تنه پولیس اواربکیان مړه اودرې نورسخت ژوبل شول،دجګړې په مهال یوتن مجاهد زخمي اویوبل دشهادت لوړمقام ته ورسید ، انالله واناالیه راجعون. ۲۰۱۴/۳/۱

### دسنګین ولسوالۍ په ودانۍ توغندیزبریدوشو

دهلمندولایت د سنګین ولسوالۍ په مرکز توغندیز بریدترسره شو،دبرید په مهال دوه توغندي دولسوالۍ په انګړ کې ولګېدل چې له امله یې دښمن ته تلفات واوښتل . ۲۰۱۴/۳/۱

### سنګین کې یوه شوبله تخریب ۵عسکرووژل شول

دهلمندولایت د سنګین ولسوالۍ اړوند دځاروان قلعه دکوټیزو په سیمه کې له اجیردښمن سره سخته جګړه وشوه، دجګړې په مهال یوه شوبله په ماین والوزول شوه چې په بشپړه توګه ویجاړه اوپنځه تنه عسکرویکې ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۲

### موسی کلاکې ۲عسکر قتل یو ټوپک غنیمت شو

دهلمندولایت د موسی کلا ولسوالۍ بازارته څیرمه داخندزاده خېلو په کلي کې داجیري اردو په پلې ګزمه وسلوال بریدترسره شو،په برید کې دوه تنه عسکر مړه اویوامریکایي ټوپک اوچاټنه یې غنیمت شول اوپاتي نورعسکرپه تېښته بریالي شول. ۲۰۱۴/۳/۲

### باباجي په جګړه کې ۳ عسکرووژل شول

دهلمندولایت مرکز لشکرګاه اړوند دباباجي دسپین مسجد په سیمه کې دحاجي عزیز له پمپ سره داجیري اردو په پوسته وسلوال بریدترسره شوچې په مهال یې درې تنه عسکرووژل شول، په جګړه کې یوتن مجاهددشهادت لوړمقام ته ورسید ، انالله واناالیه راجعون. ۲۰۱۴/۳/۲

### خانشین کې یوموټرویجاړ ۵پولیس قتل ۴ژوبل شول

دهلمندولایت د خانشین ولسوالۍ اړوند دقلعه نو په سیمه کې له پولیسو سره سخته جګړه وشوه، دجګړې په مهال ددښمن یو پیلډر موټر ویجاړشو پنځه تنه پولیس مړه اوڅلورنورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۲

### سنګین کې ۲موټرویجاړ ۴عسکر مړه اوژوبل شول

دهلمندولایت د سنګین ولسوالۍ اړوند دچرخکیانو مانده ته نژدې دګارو په سیمه کې داجیردښمن په موټریز کاروان وسلوال بریدترسره شو،په برید کې دوه تنه عسکر مړه اودوه

نورسخت ژوبل شول ،په دې سربېره ددښمن یوغټ اکمالاتي موټر اویو کرولا موټر په بشپړه توګه ویجاړ شول. ۲۰۱۴/۳/۲

**خانشین کې په ګزمه برید ۳ پولیس قتل ۲ ژوبل شول**

دهلمندولایت دخانشین ولسوالۍ اړوند دقلعه نو په سیمه کې دپولیسو په پلې ګزمه وسلوال بریدترسره شو،دبرید په مهال ۳ تنه پولیس مړه اودوه نورسخت ژوبل شول،دبرید په مهال یوتن مجاهدسرسرکي زخمي شو. ۲۰۱۴/۳/۲

**دقومندان په شمول ۳ اربکیان قتل ۲ نورسخت ژوبل شول**

دهلمندولایت د مارجې ولسوالۍ اړونددتریخ ناور دبارګزو په سیمه کې داربکیانوپه پلې ګزمه بریدترسره شو، په جګړه کې دیو اربکي قومندان [افغان چهار] په ګډون درې تنه اربکیان مړه اودوه نورسخت ژوبل شول،دجګړې په مهال دښمن یوتن کلیوال په شهادت ورساوه اودوه تنه نوريې له ځان سره دبندیانوپه توګه یووړل. ۲۰۱۴/۳/۲

**نوزادکې له پولیسو سره سخته نښته وشوه**

دهلمندولایت د نوزادولسوالۍ اړوند ددانې تنګي په سیمه کې له پولیسو سره نښته وشوه،په نښته کې دښمن ته تلفات واوښتل خودقیقه شمېره یې نه ده څرګنده شوې. ۲۰۱۴/۳/۳

**نهرسراج کې اشغالګرو ۴ کلیوال بندیان کړل**

دهلمندولایت د ګرشک ولسوالۍ اړوند دنهرسراج دیخچال په سیمه کې اشغالګرو عسکرو په عامو وګړو چاپه ووهله او څلورتنه کلیوال یې له ځان سره دبندیانوپه توګه بوتلل. ۲۰۱۴/۳/۳

**خانشین کې دسرحدي پولیسو رېنجر په ماین والوت**

دهلمندولایت د خانشین ولسوالۍ اړوند دریګ په سیمه کې دکاڑیانو له غار سره داجیروسرحدي پولیسو په موټر دماین چاودنه وشوه، دچاودني له امله رېنجر ویجاړ اوپکې ناستو پولیسوته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۴

**نادعلي کې دوه عسکرو قتل یوبل سخت ژوبل شو**

دهلمندولایت د نادعلي ولسوالۍ اړوند دشاول مانده په سیمه کې له ماموریت سره داجیري اردوپه پلې ګزمه دماین چاودنه وشوه، چاودني دوه تنه عسکر مړه اویوبل سخت ژوبل کړ. ۲۰۱۴/۳/۴

**واشیر کې ماین دوه عسکرو قتل یوبل سخت ژوبل کړ**

دهلمندولایت د واشیر ولسوالۍ اړوند دفوزیرک په سیمه کې داجیري اردوپه پلې ګزمه دماین چاودنه وشوه چې له امله یې دوه عسکر مړه اویوبل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۴

**سنګین په جګړه کې ۷ پولیس ووژل شول**

دهلمندولایت د سنګین ولسوالۍ اړوند ګارو په سیمه کې پرغزیدلي سړک له پولیسو سره سخته جګړه وشوه، په جګړه کې ددښمن ۷ تنه پولیس مړه اویو شمېر نورژوبل شول، دجګړې په مهال څلورتنه مجاهدین زخمیان شول. ۲۰۱۴/۳/۴

**نادعلي کې دبهرنیانو زغروال ټانک دماین ښکار شو**

دهلمندولایت د نادعلي ولسوالۍ اړوند دشاول مانده په سیمه کې دشوراب میدان پای ته داشغالګرو په زغروال ټانک دماین چاودنه وشوه، په چاودنه کې ټانک په بشپړه توګه ویجاړ اوپکې ناستو عسکروته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۴

**مارجه کې په رېنجر چاودني ٦ عسکرووژل**

دهلمندولایت دمارجې ولسوالۍ دیوولسم بلاک په سیمه کې پرغزیدلي سړک داجیري اردوپه یوه رېنجرموټر دماین چاودنه وشوه، دچاودني له امله رېنجرپه بشپړه توګه ویجاړ اوپکې ناست شپږ تنه عسکر مړه اودوه نور مرګوني ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۴

**لشکرګاه په جګړه کې ۳ پولیسوته مرګ ژوبله واوښته**

دهلمندولایت د مرکزلشکرګاه اړوند دسرکار په سیمه کې له اجیردښمن سره سخته جګړه وشوه چې په ترڅ کې یې دریو تنو پولیسوته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۴

**دبلوچانوپه سیمه کې له دښمن سره سخته جګړه وشوه**

دهلمندولایت مرکزلشکرګاه او د ګرشک ولسوالۍ دنهرسراج ترمابین دبلوچانوپه سیمه کې داجیري اردو له عسکروسره شدیده جګړه وشوه، په جګړه دښمن ته داوښتو تلفاتو شمېره نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۴/۳/۵

**ګرشک کې د اشغالګرو یو ټانک یې په ماین والوت**

دهلمندولایت د ګرشک ولسوالۍ اړوند دنهرسراج دیخچال اومیرحمزه په سیموکې له اشغالګروعسکرو سره چې سیمې ته دعملیاتو په موخه راغلل درنه جګړه وشوه، دجګړې په مهال ددښمن یوزغروال ټانک په ماین والوزول شو، چاودنې ټانک ویجاړ او څلوروتنو اشغالګروته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۵

**ګرشک کې له دښمن سره درنه جګړه وشوه**

دهلمندولایت ګرشک ولسوالۍ اړوند دامیرپایند غونډې اومیرمندو اوحاجي اغا پله سیموته له پولیسو او اربکیانو سره اوږده نښته وشوه، داوږدمهالي جګړې په ترڅ کې ددښمن یوه شوبله په هشتاد۲ وویشتل شوه اویوزرینجرموټریې په ماین والوزول شو، په پېښه کې ددښمن ۷ تنه عسکروته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۶

**ناوه کې ماین ۳ پولیس مړه اوژوبل کړل**

دهلمندولایت د ناوې ولسوالۍ اړوند دخسراباد په سیمه کې په پولیسو دماین چاودنه وشوه، دچاودنې له امله درې تنه پولیسو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۶

**لشکرګاه کې له ګډ دښمن سره شدیده جګړه وشوه**

دهلمندولایت دمرکزلشکرګاه اړوند دخوشکاوي په سیمه کې ګڼ شمیر اشغالګرو اوګوډاګیو عسکرو دچورلکوپه توسط راښکته شول چې دمجاهدینو له سخت مقاومت سره مخ شول ، په اوږده او شدیده نښته کې دښمن ته تلفات واوښتل اودتلفاتو په لیدلو سره له سیمې وتښتېدل. ۲۰۱۴/۳/۶

**نوزادکې له اشغالګرو او اجیروسره یې سخته جګړه وشوه**

دهلمندولایت د نوزادولسوالۍ اړوند دچکاو کاریز په سیمه کې له اشغالګرو او اجیروعسکرو سره سخته جګړه وشوه، په جګړه کې دښمن ته درانه تلفات واوښتل او دتېښتې لاره یې خپله کړه. ۲۰۱۴/۳/۶

**باباجي کې په پوستو برید ۴ پولیس قتل ۳ژوبل شول**

دهلمندولایت مرکز لشکرګاه اړوند دباباجي دلوی مانده اواوپاشک ترمابین دبوغرا پرغاړه دپولیسو په ۷ پوستو وسلوال بریدترسره شو، په برید کې پوستو ته په زیان اوښتو سربیره څلورتنه پولیس مړه اودرې نورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۶

**ګرشک کې له اجیر دښمن سره درنه جګړه وشوه**

دهلمندولایت د ګرشک ولسوالۍ اړونددآدم خان داوترنګې په سیمه کې له اجیروعسکرو اوپولیسوسره سخته نښته وشوه، داوږدمهالي جګړې په ترڅ کې شپږوتنو عسکروته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۶

**نوزادکې له پولیسو سره سخته جګړه وشوه**

دهلمندولایت د نوزادولسوالۍ اړوند ددانې تنګې په سیمه کې له پولیسو سره سخته جګړه وشوه، په جګړه کې دښمن ته تلفات واوښتل خو کره شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۴/۳/۶

**سنګین په غلچکي بریدکې یوپولیس ووژل شو**

دهلمندولایت د سنګین ولسوالۍ په بازارکې یوتن پولیس دمجاهدینوله لوري دیوه غلچکي بریدپه ترڅ کې ځای په ځای ووژل شو. ۲۰۱۴/۳/۶

**نادعلي کې داشغالګروټانک په ماین والوزول شو**

دهلمندولایت د نادعلي ولسوالۍ اړوند دشاول مانده سرته دبولدکیانو په کلي کې داشغالګرو په زغروال ټانک دماین چاودنه وشوه، دچاودنې له امله ټانک ویجاړاوپکې ناستو اشغالګروته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۷

**موسی کلاکې دوه پولیس له مجاهدینوسره یوځای شول**

دهلمنـــدولایت د موســـی کلاولســـوالۍ په مرکـــز کـــې دوه تنه پولیس (روح الله اوعصمت الله )دحقائقوپه درک کولو له اسلامي امارت سره یوځای شول،نوموړو له ځان سره دوه کلاشنکوفونه اویوموټرسایکل هم ترمجاهدینوپوري راورسول . ۲۰۱۴/۳/۷

**نوزادکې شوبله تخریب ۴عسکر مړه اوژوبل شول**

دهلمنـدولایت د نوزادولسـوالۍ اړونـد دداني تنګي پـه سـیمه کې دنظم عامه پولیسو اود اجیري اردو له عسکرو سره سخته جګړه وشوه چې په مهال یې دښمن ته درانه تلفات واوښتل، دغـه راز پـه همـدې سـیمه کـې ددښـمن عسـکر دعملیاتوپه موخه راووتل چې دمجاهدینوله وسلوال بریدسره مخ شول، دبریدپـه مهال یـوه شـوبله ویجاړه اوپکې ناستو څلوروتنو عسکروته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۸

**باباجي کې ددښمن زغروال ټانک او ۴عسکر له منځه لاړل**

دهلمنـــدولایت مرکزلشـــکرګاه اړونـــد دبابـــاجي دســـپین مسجد دمهاجرو په سیمه کې ددښمن په زغروال ټانک دماین چاودنه وشوه، چاوني ټانک ویجاړ اوپکې ناست څلورتنه عسکر ووژل . ۲۰۱۴/۳/۸

**نادعلي کې قومندان او ۴پولیس ووژل شول**

دهلمنـــدولایت دنـــادعلي ولســـوالۍ اړونـــد دشـــیرین جـــان چارراهي سرته دپولیسو رینجر موټرپه ماین والوزول شو،په چاودنه کې رینجر ویجاړ او د قومندان اسماعیل په ګډون پنځه تنه پولیس ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۸

**نادعلي کې په ګزمه برید ۲عسکر قتل شول**

دهلمندولایت د نادعلي ولسوالۍ اړوند دشاول مانده دماموریت سـره دبـوغرا پرغـاړه داجیـري اردوپـه پلـې ګزمـه وسـلوال بریدترسره شو،په برید کې دوه تنه عسکر مړه اوپاتي نوریې په تېښته بریالي شول. ۲۰۱۴/۳/۸

**سنګین کې په ګزمه برید ۳عسکر قتل ۳نورژوبل شول**

دهلمندولایت د سنګین ولسوالۍ اړوند دمجید چوک په سیمه کې داجیري اردوپه پلې ګزمه وسلوال بریدترسره شوچې پـه تـرڅ کـې یـې ۳تنـه عسکر مړه اودرې نورسخت ژوبـل شـول. ۲۰۱۴/۳/۸

**سنګین کې شوبله تخریب ۳عسکر قتل ۲ژوبل شول**

دهلمنـدولایت د سـنګین ولسـوالۍ اړونـد دریګیـانو پـه سـیمه کې داجیـري اردو شـوبله پـه مـاین والـوزول شـوه،په پېښـه کـې شوبله ویجاړه ،درې تنه عسکر مړه اودوه نورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۸

**سنګین په وسلوال برید کې ۲پولیس ژوبل یوبل ووژل شو**

دهلمندولایت د سنګین ولسوالۍ اړوند دڅاروان قلعه دکوټیزو پـه سـیمه کـې دپولیسـو پـه پلـې ګزمـه پـه پولیسـو وسـلوال بریدترسره شو،په بریـد کې یـوتن پـولیس مړ اودوه نورسـخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۸

**نادعلي په برید کې یو اربکی قتل دوه نورژوبل شول**

دهلمنـدولایت د نـادعلي ولسـوالۍ اړونـد دمـاتکي ذخیـري پـه سـیمه کـې داربکیـانو پلـې ګزمـــه تـــر وســـلوال بریدلانـــدې راغله،دبریدپـه پایلـه کـې یـواربکی ووژل شـواودوه نورسـخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۹

**ګرشک کې داربکیانوپه پوسته وسلوال بریدترسره شو**

دهلمندولایت دګرشک ولسوالۍ اړوند دآدم خان داوترنګي پـه سیمه کـې داربکیـانو پـه پوسـته وسلوال بریدترسـره شـو،په برید کې دښمن ته د اوښتو تلفاتوکره شمېره یې نـه ده څرګنـده شوې. ۲۰۱۴/۳/۹

**واشیر کې په ګزمه برید ۲ عسکروووژل شول**

دهلمندولایت د واشیر ولسوالۍ اړوند دکاریز نو په سیمه کې پرغزیـدلي سـړک داجیـري اردو پـه پلـې ګزمـه وسـلوال بریدترسره شو،په پېښه کې دوه تنه عسکر مړه اوپـاتي نـوریې په تېښته بریالي شول. ۲۰۱۴/۳/۹

**موسی کلاکې شوبله تخریب ۴عسکروووژل شول**

دهلمندولایت د موسی کلاولسوالۍ اړوند ددوآب په سیمه کې داجیري اردو په شوبله دماین چاودنه وشوه، دچاودني له امله شوبله ویجاړه اوپکې سپاره څلورتنه عسکر ووژل شول.
۲۰۱۴/۳/۹

**باباجي کې دجاسوسي شبکې ۳ غړي ووژل شول**

دهلمندولایت مرکزلشکرګاه اړوند دباباجي دلوی مانده په سیمه کې دجاسوسي شبکې پرغړو وسلوال بریدترسره شو،دبریدپه مهال یو کرولا موټر ویجاړ اوپکې سپاره دجاسوسي شبکې دري تنه کارمندان ووژل شول.
۲۰۱۴/۳/۹

**لشکرګاه کې دوه پولیس ووژل شول**

دهلمندولایت د مرکزلشکرګاه اړوند دبولان دنمر و په سیمه کې دوه تنه پولیس د مجاهدینو له لوري دغلچکي بریدپه ترڅ کې ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۹

**سنګین کې په پوسته برید ۱عسکرووژل شو**

دهلمندولایت دسنګین ولسوالۍ اړوند دچهارده په سیمه کې مجاهدینوداجیري اردو پوستې ته لاسي بمونه وغورځول چې له امله یې یوتن عسکر ووژل شو. ۲۰۱۴/۳/۹

**نهرسراج کې په پوستو برید ۲پولیس قتل ۲ژوبل شول**

دهلمندولایت د ګرشک ولسوالۍ اړوند دپوپلزو په سیمه کې دشاهراه دپولیسو په۲ پوستو بریدترسره شو،په برید کې دیوې پوستې یوبرج ویجاړ ،دوه تنه پولیس مړه اودوه نورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۱۰

**لشکرګاه کې داجیر دښمن رینجر موټر دماین ښکار شو**

دهلمندولایت د مرکزلشکرګاه دبولان په سیمه کې پرغزیدلي سړک د پولیسو رینجر موټر دماین ښکارشو،دچاودني له امله رینجرپه بشپړه توګه ویجاړ اوپکې ناستو عسکروته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۱۰

**دلشکرګاه اونهرسراج ترمابین له دښمن سره سخته جګړه وشوه**

دهلمندولایت د مرکزلشکرګاه او دنهرسراج ترمابین دبارګزو په سیمه کې له پولیسو سره چې سیمي ته دعملیاتوپه موخه راغلي وو سخته نښته وشوه، په نښته کې دښمن ته تلفات واوښتل خوکره شمېره یې نه ده ترلاسه شوې.
۲۰۱۴/۳/۱۰

**واشیر کې اشغالګرو یودکاندار بندي کړ**

دهلمندولایت د واشیرولسوالۍ اړوند د شاپښتۍ د ناخومګري په سیمه اشغالګرو دچورلکوپه توسط چاپه ووهله ،دښمن دچاپې په پایله کې یوتن کلیوال دوکاندار له ځان سره دبندي په توګه یووړ. ۲۰۱۴/۳/۱۱

**نادعلي کې ماین ۲اربکیان اودوه عسکرووژل**

دهلمندولایت د نادعلي ولسوالۍ اړوند دچانجیر په سیمه کې سورپله ته څېرمه داجیري اردواواربکیانوپه ګډه ګزمه دماین چاودنه وشوه،دچاودني له امله دوه تنه داجیري اردو او دوه اربکیان ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۱۱

**سنګین کې په ګزمه برید ۲عسکر قتل یل سخت ژوبل شو**

دهلمندولایت دسنګین ولسوالۍ اړوند دریګیانو دپټروکو دغونډۍ په سیمه کې داجیري اردو په پیاده ګزمه وسلوال بریدترسره شو،په برید کې دوه تنه عسکر مړه او یوبل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۱۱

**لشکرګاه په غلچکي برید کې ۲پولیس قتل یوژوبل شو**

دهلمندولایت دمرکزلشکرګاه اړوند دبولان په سیمه کې ماموریت ته نژدې دپولیسو په موټرسایکل وسلوال بریدترسره شو،په برید کې دوه تنه پولیس مړه اویوبل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۱۱

**مارجه کې رینجرویجاړ ۴پولیس پکې ووژل شول**

دهلمندولایت دمارجې ولسوالۍ اړوند د قاري صدي د خرواریانو په سیمه کې دپولیسو په رینجرموټر دماین چاودنه وشوه،دچاودني له امله رینجر ویجاړ ، څلورتنه دنظم عامه پولیس مړه اودوه نورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۱۲

**نوزادکې دوه تنه غله ژوندي ونيول شول**

دهلمندولايت د نوزادولسوالۍ اړوند دبرنګ کاريز په سيمه کې دوه تنه غله [ميراجان او عبدالغني] وروسته له هغه مجاهدينو ژوندي ونيول چې په سيمه کې يې له خلکونغدي اوموټرسايکلونه غلاکړل. ۲۰۱۴/۳/۱۳

**سنګين کې يو عسکر په درازکوف وويشتل شو**

دهلمندولايت د سنګين ولسوالۍ بازار ته نژدې دمجيد چوک په سيمه کې داجيري اردويوتن عسکر چې دخپلې پوستې مخې ته ولاړؤ ددرازکوف په توسط ووژل شو. ۲۰۱۴/۳/۱۳

**سنګين په وسلوال بريدکې ۱پوليس قتل ۲ژوبل شول**

دهلمندولايت د سنګين ولسوالۍ اړوند دګارو په سيمه کې پرغزيدلي سړک په پوليسو وسلوال بريدترسره شو،دبريدپه مهال يوتن پوليس مړ اودوه نورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۱۳

**واشيرکې دښمن ۵ ۲کليوال بنديان ۷کوچني موټران بوتلل**

دهلمندولايت د واشيرولسوالۍاړوند دباري کلي ته ګڼ شمير اشغالګر ،داجيري اردو عسکر اوپوليس دعملياتوپه موخه راغلل، دښمن دعملياتوپه نامه ۲۵تنه کليوال او د کليوالو ۷عرادي کوچني موټران له ځان سره يوړل. ۲۰۱۴/۳/۱۳

**سنګين په جګړه کې ددښمن ۳عسکرووژل شول**

دهلمندولايت دسنګين ولسوالۍ اړوند دپانکيلي په سيمه کې له اجيردښمن سره سخته جګړه وشوه،په جګړه کې۳ تنه عسکر ووژل شول اونور په تېښته له سيمې نه لاړل. ۲۰۱۴/۳/۱۳

**سنګين کې ۱عسکرپه درازکوف وويشتل شو**

دهلمندولايت دسنګين ولسوالۍ اړوند دچهارده په سيمه کې يوتن عسکر د خپلې پوستې مخې ته په درازکوف وويشتل شو اوځای په ځای ووژل شو. ۲۰۱۴/۳/۱۳

**د دمارجې په امنيه قومندانۍ کې يوه پوليس ۲نورپوليس ووژل**

دهلمندولايت د مارجې ولسوالۍ په امنيه قومندانۍ کې دننه دپوليسوترمنځ نښته وشوه،په نښته کې يوه پوليس خپل دوه ملګري وويشتل چې وروسته دنوروپوليسوله لوري ژوندی ونيول شو. ۲۰۱۴/۳/۱۴

**نوزادکې شوبله تخريب ۴عسکرپکې ووژل شول**

دهلمندولايت د نوزادولسوالۍ اړوند د داني تنګې په سيمه کې داجيري اردويوه شوبله دماين ښکارشوه،په پېښه کې شوبله ويجاړه او څلورتنه عسکر پکې ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۱۴

**نادعلي کې شوبله تخريب ۲عسکرپکې ووژل شول**

دهلمندولايت د نادعلي ولسوالۍ اړوند دنرې مانده اوژړپله ترمابين سيمه کې دبوغرا پرغاړه داجيردښمن يوه شوبله په ماين والوزول شوه، په چاودنه کې شوبله ويجاړه او دوه تنه اجير عسکر ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۱۴

**نوزادکې دپوليسو ټانک په ماين والوزول شوه**

دهلمندولايت د نوزاد ولسوالۍ اړوند دنوزاد رود په سيمه کې ګرشک ته پرغزيدلي سړک دنظم عامه پوليسو ټانک دماين ښکار شو،دچاودنې له امله ټانک ويجاړاوپکې ناستو پوليسو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۱۴

**ګرشک کې داربکيانوپه پوسته وسلوال بريدترسره شو**

دهلمندولايت د ګرشک ولسوالۍ اړوند دآدم خان داوترنګې په سيمه کې داربکيانو په پوسته وسلوال بريدترسره شو،دبريدپه پايله کې دښمن ته تلفات واوښتل خودقيقه شمېره يې نه ده څرګنده شوې. ۲۰۱۴/۳/۱۴

**باباجي دقومندان په شمول ۴پوليسوته مرګ ژوبله واوښته**

دهلمندولايت مرکز لشکرګاه اړوند دباباجي دلوی مانده د سيفن په سيمه کې دبوغرا پرغاړه دپوليسو په پلې ګزمه دماين چاودنه وشوه، چاودنې دقومندان نقيب په ګډون دوه تنه پوليس مړه اودوه نورسخت ژوبل کړل. ۰۱۴/۳/۱۴

**سنګین کې شوبله ویجاړه ۵ عسکر پکې ووژل شول**

دهلمنـدولایت د سـنګین ولسـوالۍ بازارتـه نـژدې دحـاجي میر ګل دباري په سیمه کې داجیري اردوپه شوبله دماین چاودنه وشوه، دچاودني له امله شوبله پوره ویجاړه اوپکې ناست پنځه تنه عسکر ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۱۴

**نهرسراج کې رینجرویجاړ ۴عسکر قتل ۳ژوبل شول**

دهلمنـدولایت د ګرشـک ولسـوالۍ اړونـد دنهرسـراج دیخچـال دناصـرانوپه سـیمه کـې دکنـدهارهرات پرغزیـدلي سـړ ک داجیري اردوپه رینجرموټر دماین چاودنه وشوه، په چاودنه کې رینجر ویجاړ، څلورتنه عسکر مړه اودرې نورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۱۴

**سنګین کې یوعسکر په دراز کوف وویشتل شو**

دهلمندولایت د سنګین ولسوالۍ اړوند دامان الله کاریز په سیمه کـې داجیـري اردو یـوتن عسـکر دمجاهدینولـه لـوري پـه درازکوف په نښه اوځای په ځای ووژل شو. ۲۰۱۴/۳/۱۴

**موسی کلا په وسلوال برید کې ۲عسکرووژل شول**

دهلمندولایت د موسی کلاولسوالۍ اړوند دکاني مانده په سیمه کې داجیروعسکرو په پوسته وسلوال بریدترسره شو چې په مهال یې دوه تنه عسکر ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۱۵

**نهرسراج کې ماین ۳عسکر قتل ۱ژوبل کړ**

دهلمندولایت د ګرشک ولسوالۍ دنهرسراج دیخچال په سیمه کې دناصرانو کلي ته څېرمه دکندهارهرات پرغزیدلي سړ ک داجیري اردو په پیاده ګزمه د ماین چاودنه وشوه، چاودنی درې تنه عسکر مړه اویوبل سخت ژوبل کړ. ۲۰۱۴/۳/۱۵

**نوزادکې چاودنې ۳پولیسوته مرګ ژوبله واړوله**

دهلمندولایت د نوزادولسوالۍ بازارته نژدې دشغزو کاریز په سیمه کې دپولیسو په پیاده ګزمه دماین چاودنه وشوه چې له امله یې درې تنه پولیس مړه او ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۱۵

**سنګین کې دهاوان مرمۍ ۲عسکر قتل یوژوبل کړ**

دهلمندولایت د سنګین ولسوالۍ بازارته نژدې دحاجي میر ګل لـــه بـــاوړي ســـره داجیـــري اردو شـــوبله دمـــاین ښکارشوه، وروسته دښمن دېښني ځای په هاوانونو ویشت چې ددښمن په عسکرو یوه دهاوان مرمۍ وچاودیدله او له امله یې دوه تنه عسکر مړه اویوبل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۱۵

**مارجه کې دپوستي مخې ته ۱عسکر قتل مهمات یې غنیمت شول**

دهلمنـــدولایت دمـــارجې ولســـوالۍ اړونـــد دقـــاري صـــدي دپارچاوي په سیمه کې یوتن اجیر عسکر دخپلې پوستي مخې ته ووژل شواو ټوپک اوچانټه یې غنیمت شوه. ۲۰۱۴/۳/۱۶

**موسی کلاکې دقومندان په شمول ۳تنه پولیس ووژل شول**

دهلمندولایت د موسی کلاولسوالۍ اړوند دآسمانیانوپه سیمه کې دپولیسوپه رینجر موټردماین چاودنه وشوه، دچاودني له املـه رینجـر ویجـاړ او د قومنـدان [علي احمداستاذ] پـه ګـډون څلورتنه پولیس ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۱۷

**باباجي کې داکمالاتي کاروان ۲عسکر قتل ۴ژوبل شول**

دهلمندولایت مرکز لشکرګاه اړوند دباباجي داوپاشک اوسپین مسـجدترمابین دحـق نظـر دټیلـو لـه پمـپ سـره ددښـمن پـه اکمـالاتي کـاروان وسـلوال بریدترسـره شـو، دبریدپـه مهـال پـه دښمن دماین چاودنه هم وشوه، په پېښه کې دوه تنه عسکر مړه اوڅلورنورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۱۷

**مارجه کې په پوسته برید ۴اربکیان قتل ۳ژوبل شول**

دهلمندولایت د مارجې ولسوالۍ اړوند دقاري صدي پـه سیمه کې داربکیانو پـه پوسـته وسـلوال بریدترسـره شـو، په بریـد کې څلورتنـه اربکیـان مـړه اودرې نورسـخت ژوبـل شـول، دبریدپه مهـال دوه تنـه مجاهـدین دشـهادت لوړمقـام تـه ورسـیدل، اناالله واناالیه راجعون. ۲۰۱۴/۳/۱۸

**ګرشک کې داربکیانو ۳پوستې تربریدلاندې راغلې**

دهلمندولایت دگرشک ولسوالۍ اړوند دمیرمندو اوزمبلي ترمابین دحاجي هاشم اکا په کلي کې داربکیانو دکمربند په ۳ پوستووسلوال برید تر سره شو،په برید کې دښمن ته ځاني اومالي تلفات اواوښتل خودتفیقه شمېره یې نه ده څرګنده شوې، دبرید په مهال یوتن مجاهدپه شهادت ورسېد.اناالله واناالیه راجعون. ۲۰۱۴/۳/۱۸

**مارجه کې داشغالګروزغروال ټانک له منځه لاړ**

دهلمندولایت د مارجې ولسوالۍ اړوند دشیغزک په سیمه کې داشغالګرو په زغروال ټانک دماین چاودنه وشوه،دچاودني له امله ټانک ویجاړ اوپکې ناستو اشغالګرو ته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۱۸

**باباجي کې په ګزمه برید ۲عسکرقتل ۲ژوبل شول**

دهلمندولایت مرکز لشکرګاه اړوند دباباجي دکوېکي په سمیه کې داجیري اردو په پلې ګزمه وسلوال بریدترسره شو، دبرید په ترځ کې دوه تنه عسکر مړه،دوه نورسخت ژوبل شول اوپاتي نورېې په تېښته بريالي شول. ۲۰۱۴/۳/۱۸

**ناوه کې له ګډدښمن سره درنه جګړه وشوه**

دهلمندولایت دناوې ولسوالۍاړوند دټانګانو دګودر په سیمه کې ګڼ شمیر اشغالګر اوعسکر دچورلکوپه توسط راښکته شول او دمجاهدینوتر وسلوال برید لاندې راغلل، په جګړه کې دښمن ته داوښتي زيان په اړه معلومات نه دي تر لاسه شوي. ۲۰۱۴/۳/۱۸

**سنګین کې یو عسکر په دراز کوف وویشتل شو**

دهلمندولایت د سنګين ولسوالۍ اړوند دچهاردې په سیمه کې داجیري اردویوتن عسکر د مجاهدینوله لوري په دراز کوف وویشتل شو چې ځای په ځای ووژل شو. ۲۰۱۴/۳/۱۸

**نوزادکې په ګزمه برید ۳عسکروته مرګ ژوبله واوښته**

دهلمندولایت د نوزادولسوالۍ اړوند دانګرک کاریز په سیمه کې دنظم عامه اواجیري اردو په ګډه ګزمه وسلوال بریدترسره شو،په برید کې ۳ تنو پولیسو اوعسکروته مرګ ژوبله واوښته او نورېې په تېښته بريالي شول. ۲۰۱۴/۳/۱۹

**نادعلي کې په ګزمه برید ۳عسکر قتل یوبل ژوبل شو**

دهلمندولایت د نادعلي ولسوالۍ اړوند دنرې مانده په سیمه کې دبوغرا پرغاړه داجيري اردو په پلې ګزمه وسلوال بریدترسره شو،دبرید په پایله کې درې تنه عسکر مړه اویوبل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۱۹

**مارجه کې ۴عسکر اوپولیس قتل ۲ژوبل شول**

دهلمندولایت د مارجې ولسوالۍ اړونددسستاني په سیمه کې په اجیردښمن وسلوال بریدترسره شو، دبرید په ترځ کې څلورتنه عسکر اوپولیس مړه اودوه نورسخت ژوبل شول دبرید په مهال یوتن مجاهد د شهادت لوړمقام ته ورسید، اناالله واناالیه راجعون. ۲۰۱۴/۳/۱۹

**باباجي کې رېنجرویجاړ ۴عسکر قتل ۲ژوبل شول**

دهلمندولایت د مرکز لشکرګاه اړوند دباباجي دلوچک په سیمه کې داجیري اردو یورېنجر موټر دماین ښکارشو،په پېښه کې رېنجر په بشپړه توګه ویجاړ اوپکې سپاره څلور تنه اجیر عسکر مړه اودوه نورمرګوني ټپیان شول. ۲۰۱۴/۳/۱۹

**سنګین په کاروان برید ۱کماز تخریب ٦عسکر مړه اوژوبل شول**

دهلمندولایت د سنګین ولسوالۍ اړونددچرخکیانومانده ته نژدې دګاروپه سیمه کې پرغزیدلي سړک داجیري اردو موټرېز کاروان تر وسلوال برید لاندې راغی،دبرید په مهال ددښمن یوکماز ویجاړ اوپکې ناستو ٦تنو عسکروته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴/۳/۱۹

**مارجه کې ۳شوبلي تخریب ۵عسکرقتل ۷ژوبل شول**

د هلمندولایت د مارجې ولسوالۍ اړوند دترخه ناور دبارکزو بلاک په سیمه کې داجیري اردو اوپولیسو په ګډموټرېز کاران پراخ وسلوال بریدترسره شو، دبرید په ترځ کې ددښمن درې شوبلي تخریب شوې، ۵ تنه عسکراوپولیس

مـــړه او۷ تنـــه نورســـخت ژوبـــل شـــول. ۲۰۱۴/۳/۱۹

**لشکرګاه کې ۳عسکر قتل ۳نور سخت ژوبل شول**

دهلمندولایت دمرکز لشکرګاه ښاروند داول سرک پـه سیمه کې لـه اجیردښمن سره سختـه جګـړه وشـوه، په اوږده جګـړه کـې ددښمن درې تنـه عسکراوپولیس ځـای پـه ځـای قتـل اودرې نورسخت ژوبل شول ،دجګړې په مهال یوتن مجاهدزخمي شو. ۲۰۱۴/۳/۲۰

**باباجي په جګړه کې ۷عسکر او پولیس قتل ۵ژوبل شول**

دهلمنـدولایت دمرکزلشـکرګاه مربـوط دباباجي ښاروند دسـپین مسجدپه سیمه کې له اجیردښمن سره سخته جګړه وشوه، په جګړه کې ددښمن ۷تنه عسکراوپولیس مړه او۵نورسخت ژوبل شول،دجګړې په جریان کې دوه تنه مجاهدین زخمیان شـول. ۲۰۱۴/۳/۲۰

**نهرسراج کې چاودني یو عسکر وواژه**

دهلمنـدولایت دګرشـک ولسـوالۍ ښاروند دنهرسـراج دیخچـال دناصـرانوپه سـیمه کـې داجیـري اردو پـه پلـې ګزمـه د مـاین چاودني یوتن عسکر وواژه. ۲۰۱۴/۳/۲۱

**واشیرکې جلاچاودنو یو بهرنی عسکر یوزغروال ټانک له منځه یووړل**

دهلمندولایت دواشیرولسوالۍ ښاروند دبجرابیا په سیمه کې پـه پیاده اشغالګرو عسکرو دماین چاودنه وشوه چې له امله یې یوتن بهرنی عسکر ووژل شو، دغه راز پـه یـاده سیمه کې داشغالګرو یوزغروال ټانک په ماین والوزول شو، دغې چاودني ټانک پـوره ویجـاړ اوپکـې ناسـتو اشـغالګرو تـه مـرګ ژوبلـه واړولـه. ۲۰۱۴/۳/۲۱

**مارجه کې یونفوذي مجاهد ۲ اربکیان ژوندي ونیول ګڼ مهمات یې غنیمت کړل**

دهلمنـدولایت د مـارجې ولسـوالۍ ښاروند دترخـه نـاور دحـاجي حیـــدر اډې پـــه ســـیمه کـــې داربکیانوپـــه پوســـته کـــې دننه یوتن نفوذي مجاهد دوه تنـه اربکیـان ژونـدي ونیـول اولـه یوه ثقیل ، یوراکټ ، څلورکلاشنکوفونو اوله ګڼ شمیرمهماتو سره یې ترمجاهدینو راورسول. ۲۰۱۴/۳/۲۲

**موسی کلاکې په پوستو برید ۷پولیسوته مرګ ژوبله واوښته**

دهلمندولایت د موسی کلاولسوالۍ ښاروند دچغالي په سیمه کې دپولیسـو پـه ۲ پوسـتو وسـلوال بریدترسـره شـو،په بریـد کې دپوسـتو دوه برجونـه پـوره تخریـب، ۵ تنـه پـولیس مـړه او۳ نورسخت ژوبـل شـول،دبریدپه مهال یـوتن مجاهـد زخمـي شو. ۲۰۱۴/۳/۲۲

**مارجه کې په پوسته برید ۲اربکیان قتل یوژوبل شو**

دهلمندولایت د مارجې ولسوالۍ ښاروند دقاري صدي پـه سیمه کې دبوغرا پرغاړه داربکیـانو پـه پوسته وسلوال بریدترسـره شو،په برید کې دوه تنه اربکیان مړه اویوبـل سخت ژوبـل شـو. ۲۰۱۴/۳/۲۳

**نادعلي کې موټرویجاړ ۵پولیس پکې ووژل شول**

دهلمندولایت دنادعلي ولسوالۍ ښاروندچانجیر دشملان ویـالې پـه سیمه کې دپولیسـو پـه کرولاموټردمـاین چاودنـه وشـوه، دچاودني لـه املـه مـوټر پـوره ویجـاړاوپکې ناست پنځـه تنـه ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۳

**واشیرکې ماین دوه پولیس قتل بل سخت ژوبل کړ**

دهلمندولایت د واشیرولسوالۍ مرکزته څېرمـه دکولي چیخي پـــه ســـیمه کـــې دپولیســـو پـــه پلـــې ګزمـــه دمـــاین چاودنه وشوه،دچاودني لـه املـه دوه تنـه پـولیس مـړه او یـوبـل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۲۳

**مارجه کې په ګزمه برید ۲ اربکیان ووژل شول**

دهلمنـدولایت د مـارجې ولسـوالۍ ښاروند دترخـه نـاور دګـردي بلاک په سیمه کې داربکیانوپه پلې ګزمـه وسلوال بریدترسـره شو،په بریـد کې دوه تنـه اربکیـان مـړه اونـور پـه تېښـته بریـالي شول. ۲۰۱۴/۳/۲۳

**ګرمسیر کې داجیري اردو په ګزمه چاودنه وشوه**

دهلمندولایت دګرمسیر ولسوالۍ اړوند دماجینک په سیمه کې داجیري اردوپه پلې ګزمه دماین چاودنه وشوه،دچاودني له امله دښمن ته تلفات واوښتل خودقیقه شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۴/۳/۲۳

**ګرمسیرکې دپولیسو دماموریت دمرستیال په شمول ۳پولیس ووژل شول**

دهلمندولایت دګرمسیر ولسوالۍ اړوند د درزي په سیمه کې دپولیسو په کرولاموټر وسلوال بریدترسره شو،په برید کې موټر ویجاړ اوپکې سپاره څلورتنه پولیس ووژل شول،په وژل شویو پولیسو کې د درزي دسیمې دپولیسو دماموریت مرستیال عبدالرحمان هم ګډون لري . ۲۰۱۴/۳/۲۳

**سنګین کې داجیري اردوپه پوسته بریدترسره شو**

دهلمندولایت د سنګین ولسوالۍ اړوند دمجیدچوک په سیمه کې داجیري اردوپه پوسته وسلوال بریدترسره شو،په برید کې دښمن ته تلفات واوښتل خوکره شمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۴/۳/۲۴

**مارجه کې یوتن اربکی له مجاهدینوسره یوځای شو**

دهلمندولایت په مارجه ولسوالۍ کې یوتن اربکی [ محمدګل ] دحقاقئوپه درک کولو له اسلامي امارت سره یوځای شو،نوموړي له ځان سره یوکلاشنکوف اویوه چاېنټه هم ترمجاهدینوپوري راورسول. ۲۰۱۴/۳/۲۴

**مارجه کې په پوسته برید ۱اربکی قتل ۱ژوبل شو**

دهلمندولایت د مارجې ولسوالۍ اړوند دسستاني دغلام محمد خان په کلي کې داربکیانو پوسته تربرید لاندي راغله، دبرید په پایله کې پوستې ته په زیان اوښتو سربیره یوتن اربکی مړ اویوبل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۲۴

**سنګین کې یوعسکرپه درازکوف وویشتل شو**

دهلمندولایت د سنګین ولسوالۍ اړوند دمجید چوک په سیمه کې یوتن اجیرعسکر دخپلي پوستې مخې ته دمجاهدینوله لوري ددرازکوف په توسط ووژل شو. ۲۰۱۴/۳/۲۴

**باباجي کې ۲عسکرقتل یوژوبل شو**

دهلمندولایت مرکزلشکرګاه اړوند دباباجي دلوی مانده په سیمه کې دبوغرا پرغاړه داجیري اردوپه پلیوعسکرو وسلوال بریدترسره شو،په برید کې دوه تنه عسکر مړه او یوژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۲۴

**باباجي په جګړه کې ۲قومندانان او ۲عسکرووژل شول**

دهلمندولایت د مرکزلشکرګاه اړوند دباباجي د سپین مسجد او اوپاشک سیموتر مابین دمهاجرو په سیمه کې داجیري اردو له هغه عسکرو اوپولیسو سره سخته نښته وشوه چې سیمي ته دعملیاتوپه موخه راووتل، په اوږده نښته کې ددښمن د ۲ قومندانانو [صدیق الله او حاجي ملا]په شمول څلورتنه مړه اودوه نورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۴

**مارجه کې دوه پولیس په درازکوف وویشتل شول**

دهلمندولایت د مارجې ولسوالۍ اړونددترخه ناور د دوراهي په سیمه کې دوه تنه مزدور پولیس دمجاهدینوله لوري په درازکوف وویشتل شول چې ځای په ځای ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۵

**نوزادکې له ګـــډدښمن سره سخته جګړه وشوه**

دهلمندولایت د نوزادولسوالۍ اړوند د اورموز کاریز په سیمه کې له اشغالګرو اواجیروعسکرو سره سخته جګړه وشوه،په جګړه کې دښمن ته تلفات واوښتل خودقیقه شمېره یې نه ده ترلاسه شوې، دجګړې په پای کې دښمن څلورتنه کلیوال له ځان سره دبندیانوپه توګه بوتلل. ۲۰۱۴/۳/۲۵

**سنګین کې په رینجرچاودني ۴پولیس قتل ۲ژوبل کړل**

دهلمنـــدولایت د ســـنګین ولســـوالۍ اړونـــد دڅـــاروان قلعه دملکانوپه سیمه کې پرغزیدلي سړک دپولیسو په رینجرموټر دماین چاودنه وشوه، دچاودني له امله رینجرپه بشپړه توګه ویجاړ ، څلورتنه پولیس مړه اودوه نورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۵

**نوزادکې ۱موټر ۱موټرسایکل او ۴پولیس له منځه لاړل**

دهلمندولایت د نوزادولسوالۍ اړونددجنګولک کاریز په سیمه کې دپولیسو په کرولا موټر د ماین چاودنه وشوه، دچاودنې له امله موټر ویجاړ اوپکې سپاره دوه تنه پولیس ووژل شول،وروسته دپېښې ځای ته دوه تنه نور پولیس په موټرسایکل راورسیدل چې دیوه بل قوي انفجارسره مخ شول، دچاودنې له امله موټرسایکل ویجاړاودواړه پولیس ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۵

**سنګین کې په پوسته بریدروان دی ، یوه شوبله له منځه لاړه**

دهلمندولایت دسنګین ولسوالۍاړوند دڅاروان قلعه دتوغې په سیمه کې دپولیسو په پوسته وسلوال بریدترسره شو،دبرید په مهال یادې پوستې ته نورپولیس دکومک په موخه راروان وو، چې یوه شوبله یې دخښ شوي ماین په مټ والوزول شوه،په چاودنه کې شوبله له منځه لاړه اوپکې سپاره دوه تنه مزدور پولیس مړه اودپوستې قومندان [بصیر ک ] سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۲۵

**خانشین کې ٦ پولیس قتل ګڼ مهمات غنیمت شول**

دهلمندولایت د خانشین ولسوالۍ اړوند دسرې قلعه د دښت په سیمه کې د پولیسو په موټریز کاروان وسلوال بریدترسره شو،په برید کې ددښمن یو پیلډر موټر ویجاړ اوشپږتنه پولیس ووژل شول،په دې سربېره مجاهدینو یوثقیل ، دوه کلاشنکوفونه او ګڼ شمیر مهمات غنیمت کړل. ۲۰۱۴/۳/۲۵

**نوزادکې دوه اجیر عسکر په دراز کوف وویشتل شول**

دهلمندولایت د نوزادولسوالۍ اړوند دګرمي کاریز په سیمه کې دوه تنه عسکر په درازکوف وویشتل شول اوځای په ځای ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۶

**نوزادکې په شوبله چاودنې ۴اجیر عسکرووژل**

دهلمندولایت د نوزاد ولسوالۍ اړونددجازي کاریز په سیمه کې داجیرې اردو په شوبله دماین چاودنه وشوه،دچاودنې له امله شوبله ویجاړه اوپکې سپاره څلورتنه عسکر مړه او یوبل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۲۶

**مارجه کې داجیرې اردومهمه قرارګاه فتح ۲۰عسکرووژل شول**

دهلمندولایت د مارجې ولسوالۍ اړوند دترخه ناور دبارکزو بلاک په سیمه کې ددښمن یوه مهمه قرارګاه دمجاهدینو ترپراخ وسلوال بریدلاندې راغله،دبرید په پایله کې یاده قرارګاه په بشپړه توګه فتحه شوه، ۲۰تنه عسکر مړه ،۸نورسخت ژوبل اوپاتې نورېې په تېښته بریالي شول،په جګړه کې درې تنه مجاهدین زخمیان اویوبل دشهادت لوړمقام ته ورسید، اناالله وانااليه راجعون. ۲۰۱۴/۳/۲۶

**سنګین کې په شوبله چاودنې ۵پولیس مړه اوژوبل کړل**

دهلمندولایت د سنګین ولسوالۍ اړوند دامان الله کاریز په سیمه کې په اصطلاح دنظم عامه پولیسو په شوبله دماین چاودنه وشوه،له چاودنې وروسته په دښمن وسلوال بریدهم ترسره شو، په پېښه کې ددښمن شوبله ویجاړه ،درې تنه پولیس مړه اودوه نورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۶

**نادعلي کې اشغالګرودوه تنه شهیدان اودرې کلیوال بندیان کړل**

دهلمندولایت د نادعلي ولسوالۍ اړوند دشاول مانده په سیمه کې اشغالګرو دچورلکو په توسط په یوه کورچاپه ووهله چې د دوو تنو میلمنو مجاهدینو تر برید لاندې راغلل،مجاهدین له دښمن سره تر اوږده مقاومت او هغوی ته تر تلفاتو اړولو وروسته په شهادت ورسېدل، اناالله وانااليه راجعون،وروسته اشغالګرو دکورې درې تنه چې سره ورونه دي له ځان سره دبندیانو په توګه بوتلل. ۲۰۱۴/۳/۲۶

**باباجي کې یورېنجر ۴ټانکرو ویجاړ ۴پولیس ووژل شول**

دهلمندولایت د مرکز لشکرګاه اړوند دباباجي دسپین مسجدپه سیمه کې ددښمن په اکمالاتي کاروان وسلوال بریدترسره شو،دبریدپه پایله کې ددښمن یورېنجر موټر ویجاړ ،څلور تنه پولیس مړه او په دې سربېره څلور اکمالاتي ټانکر تخریب شول. ۲۰۱۴/۳۲۷

**سنګین کې موټر تخریب ۲پولیس پکې ووژل شول**

دهلمندولایت دسنګین ولسوالۍ بازارته نژدې دګومبتوپه سیمه کې دپولیسو په کرولاډوله موټر وسلوال بریدترسره شو،په بریدکې موټرتخریب او دوه تنه مزدور پولیس ووژل شول.۲۰۱۴/۳/۲۷

**نادعـــلي کې دوه عسکرووژل شول**

دهلمندولایت دنادعلي ولسوالۍ اړوند دماتکي په سیمه کې ګڼ شمیر اشغالګر او ګوډاګي عسکر دعملیاتوپه موخه راووتل چې دمجاهدینو له برید سره مخ شول،په برید کې دوه تنه داجیري اردو عســکر ووژل شــول اونــور پــه تېښــته بریــالي شــول. ۲۰۱۴/۳/۲۷

**نادعلي کې ۴ عسکر قتل یوژوبل شو**

دهلمندولایت دنادعلي ولسوالۍ اړوند دسه ویک غربي په سیمه کې دبوغرا پرغاړه داجیري اردو په ګزمه چاودنه او وسلوال بریدترسره شو،دبریداوچاودني له امله څلورتنه اجیر عسکر ووژل شول اویوبل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۲۷

**مارجه کې دښمن یوه پوسته تخلیه کړه ،**
**او ۲پولیس ووژل شول**

دهلمندولایت دمارجې ولسوالۍ اړوند دتریخ ناور په سیمه کې دبارکزو بلاک ته نژدې دپولیسو په یوه پوسته وسلوال بریدترسره شو، په بریدکې ۲تنه مزدور پولیس ووژل شول او لږ وروسته په یاده سیمه کې اربکیان دمجاهدینو له ویرې له خپلې پوستې وتښتیدل اوپوسته یې تخلیه کړه. ۲۰۱۴/۳/۲۷

**ناوه کې ماین د ۲ ګوډاګیو عسکرو ژوندواخست**

دهلمندولایت دناوې ولسوالۍ اړونددنمرو په سیمه کې دګوډاګیو عسکرو په پلي ګزمه دماین چاودنه وشوه، دچاودني له امله دوه تنه عسکر مړه اویوبل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴-۰۳-۲۷

**سنګین کې ماین دوه تنه عسکرووژل**

دهلمندولایت دسنګین ولسوالۍ اړوند دچهارده په سیمه کې داجیري اردو په پلي ګزمه دماین چاودنه وشوه چې له امله یې دوه تنه عسکر ووژل شول. ۲۰۱۴-۰۳-۲۷

**نادعلي کې ماین دګزمې یوعسکر قتل بل ژوبل کړ**

دهلمندولایت دنادعلي ولسوالۍ اړوند دسه ویک غربي په سیمه کې دبوغراپرغاړه له ژړپله سره داجیري اردو په پلې ګزمه دماین چاودنه وشوه،دچاودني له امله یوتن عسکر مړ اویوبل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴-۰۳-۲۸

**نادعلي کې په ګزمه برید ۲عسکر یوژوبل شو**

دهلمندولایت دنادعلي ولسوالۍ اړوند دسه ویک غربي په سیمه کې دبوغرا پرغاړه دژړپله په سیمه کې داجیري اردو په پلې ګزمه وسلوال بریدترسره شو،په برید کې دوه عسکر مړه اویوبل سخت ژوبل شو،وروسته ددښمن عسکرو په کلیواله سیمه دهاوان ډزي وکړي چې له امله یې یوتن کلیوال شهیدشو. ۲۰۱۴/۳/۲۸

**نادعلي کې داشغالګروزغروال ټانک دماین ښکار شو**

د هلمندولایت دنادعلي ولسوالۍ اړوند دشني جامعي په سیمه کې دشوراب میدان څنګ ته داشغالګرو زغروال ټانک دماین ښکارشو،دچاودني له امله ټانک ویجاړ اوپکې ناستو عسکروته مرګ ژوبله واوښته. ۲۰۱۴-۰۳-۲۸

**واشیر کې ماین د ۲ګوډاګیو عسکروژوندواخست**

د هلمندولایت د واشیرولسوالۍ مرکز ته نژدې دبیدیني مانده په سیمه کې داجیري اردوپه پلي ګزمه دماین چاودنه وشوه چې له امله یې دوه تنه عسکر ووژل شول. ۲۸-۰۳-۲۰۱۴

**ناوه کې په جګړه کې ۴پولیس قتل یورینجرویجاړ شو**

دهلمندولایت دناوې ولسوالۍ اړوند دنمرو په سیمه کې داجیري اردو له هغه عسکرو اوپولیسو سره نښته وشوه چې سیمې ته دعملیاتوپه موخه راووتل،دجګړې په جریان کې د اجیرو پولیسو یو رینجر موټر په ماین والوزول شو،چاودني

موټر ويجاړ او څلورتنه مزدور پوليس مړه اودوه نورسخت ژوبل کړل. ۲۸-۰۳-۲۰۱۴

**باباجي کې په پوسته بريد ۲پوليس قتل ۲ژوبل شول**

دهلمندولايت د مرکز لشکرګاه اړوند دباباجي دلوچک په سيمه کې ددښمن په پوسته وسلوال بريدترسره شو،دبريدپه پايله کې ددښمن دوه عسکر مړه اودوه نورسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۸

**لشکرګاه کې په رينجر چاودنې ۲پوليس ووژل**

دهلمندولايت مرکز لشکرګاه اړوند دصافيانوپه سيمه کې دامير داود کورته څېرمه داجيرو پوليسو يورينجر موټرپه ماين والوزول شو،دچاودنې له امله رينجر ويجاړ ، دوه تنه پوليس مړه اويوبل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۲۸

**سنګين کې چاودنې ۱پوليس قتل بل سخت ژوبل کړ**

د هلمندولايت د سنګين ولسوالۍ دڅاروان قلعه دکوتيزو په سيمه کې دفتح شاه دپوستې په پياده پوليسودماين چاودنه وشوه،چاودنې يوپوليس وواژه اويو بل يې سخت ژوبل کړ. ۲۰۱۴/۳/۲۹

**مارجه کې رينجر تخريب ۲ عسکرپکې ژوبل شول**

دهلمندولايت د مارجې ولسوالۍ اړوند دوکيل وزير چارراهي او عليزو چارراهي ترمابين داجيري اردو په رينجر موټر د ماين چاودنه وشوه او بيا تر وسلوال بريدلاندې راغی،په پيښه کې ددښمن رينجر تخريب اودوه تنه عسکرسخت ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۲۹

**کجکي کې ۳پوليس له مجاهدينو سره يوځای شول**

دهلمندولايت د کجکي ولسوالۍ دمرکز اړوند ماموريت درې تنه پوليس (جان اغا،عبدالکريم او اغاجان)دحقانقوپه درک کولو له اسلامي امارت سره يوځای شول،نوموړو له ځان سره درې ميله کلاشنکوفونه هم ترمجاهدينو راورسول . ۲۰۱۴/۳/۲۹

**سنګين کې شوبله تخريب ۴عسکرپکې ووژل شول**

دهلمندولايت دسنګين ولسوالۍ اړوند دخاکش کاريز او ريګيانو سيموکې داجيري اردو له هغه عسکرو اوپوليسو سره جګړه وشوه چې سيموته دعملياتوپه موخه راغلل،دجګړې په مهال ددښمن يوه شوبله په ماين والوزول شوه، چاودنې شوبله ويجاړه او څلورتنه عسکر ووژل .۲۰۱۴/۳/۲۹

**باباجي کې دوه عسکر قتل وسلې يې غنيمت شول**

دهلمندولايت مرکزلشکرګاه اړوند دباباجي دکوفکي په سيمه کې دبوغرا پرغاړه داجيري اردو په پلې ګزمه وسلوال بريد ترسره شو، دبريدپه ترڅ کې دوه تنه عسکر مړه او دوه ټوپکونه اوچاننې يې غنيمت شوې. ۲۰۱۴/۳/۲۹

**نادعلي کې يوبهرنی عسکرپه دراز کوف وويشتل شو**

دهلمندولايت د نادعلي ولسوالۍ اړونددشنې جامعې په سيمه کې يوتن بهرنی عسکر چې دټانک څنګ ته ولاړ ؤ ،دمجاهدينوله لورې په دراز کوف وويشتل شو اوځای په ځای ووژل شو.۲۰۱۴/۳/۳۰

**نهرسراج کې ۴عسکراوپوليس قتل ۲ژوبل شول**

دهلمندولايت د ګرشک ولسوالۍ اړوند دنهرسراج ديخچال په سيمه کې له هغه اشغالګرو اوګوډاګيو عسکروسره سخته نښته وشوه چې سيمې ته دچورلکو په توسط راښکته شول،په اوږد مهاله جګړه کې دوه تنه پوليس اودوه داجيري اردو عسکرووژل شول اودوه نورسخت ژوبل شول،په جګړه کې دوه تنه مجاهدين هم زخميان شول،دښمن له سيمې نه ۳تنه کليوال له ځان سره دبنديانوپه توګه يووړل او په تېښته بريالي شول. ۲۰۱۴/۳/۳۰

**سنګين کې نفوذي مجاهدينو يو قومندان وواژه**

دهلمندولايت د سنګين ولسوالۍ اړوند دڅاروان قلعه دډېرې په سيمه کې داربکيانو يوتن قومندان [غيرت ]دنفوذي مجاهدينوله لورې ووژل شو،نفوذي مجاهدين له يوموټرسايکل يوه کلاشنکوف اوچاننې سره ترمجاهدينوپورې راورسيدل. ۲۰۱۴/۳/۳۰

**ګرشک کې يواربکی له مجاهدينو سره يوځای شو**

دهلمنـدولایت پـه ګرشـک ولسـوالۍ کـې یـوتن اربکـي [محمدرسول ] دحقائقوپه درک کولو له اسلامي امارت سره یوځـای شـو،نوموړي لـه ځـان سـره یوثقیـل ، یوهـاوان ، یوکلاشنکوف ، اوګڼ شمېرنورمهمات ترمجاهدینو ورسول. ۲۰۱۴/۳/۳۰

**ګرشک کې ۲اربکیان په دراز کوف وویشتل شول**

دهلمندولایت د ګرشک ولسوالۍ اړوند دآدم خان داوترنګي په سیمه کې دوه تنه اربکیان چې دپوستې په برج کې پـه پیـره وو، دمجاهدینو له لوري په دراز کوف وویشتل شول اوځای په ځای ووژل شول. ۲۰۱۴/۳/۳۰

**سنګین کې دپولیسوپوسته تروسلوال بریدلاندې راغله**

دهلمنـدولایت د سـنګین ولسـوالۍ اړونـد دامـان الله کـاریز پـه سیمه کې دنظم عامـه پولیسوپه پوسته وسلوال بریدترسره شـو،په بریـد کې دښـمن تـه داوښتو تلفاتودقیقـه شـمېره نـه ده څرګنده شوې. ۲۰۱۴/۳/۳۰

**واشیر کې داشغالګروزغروال ټانک له منځه لاړ**

دهلمندولایت د واشیرولسوالۍ اړوند دبجرابیاکاریز پـه سیمه کې داشغالګروزغروال ټانک په ماین والوزول شو،دچاودني له امله ټانک له منځه لاړ اوپکې ناست عسکر مړه او ژوبل شول. ۲۰۱۴/۳/۳۰

**نادعلي کې داشغالګروز غـروال ټانک دماین ښکار شو**

دهلمندولایت د نادعلي ولسوالۍ اړوند د شاول مانده پـه سیمه کې داشغالګرو زغروال ټانـک د مـاین ښکار شـو، چاودني ټانک بشپړ ویجاړاوپکې ناستو عسکروته مرګ ژوبله واړوله. ۲۰۱۴/۳/۳۰

**دګرشک بازار کې یوپولیس ووژل شو**

دهلمنـدولایت د ګرشـک ولسـوالۍ پـه بـازار کې یـوتن مـزدور پولیس دمجاهدینوله لوري دغلچکي بریدپه ترڅ کې ځـای پـه ځای ووژل شو. ۲۰۱۴/۳/۳/۳۱

**ګرشک په استخباراتي میلمستون کې تکتیکي چاودنه وشوه**

دهلمندولایت پـه ګرشـک ولسوالۍ کې دجاسوسي شبکي پـه خصوصي میلمستون کې تکتیکي چاودنـه وشـوه،دچاودني لـه امله دجاسوسي شبکي دوه غړي ووژل شول اویوړینجر موټرېې ویجاړ شو. ۲۰۱۴/۳/۳۱

**باباجي کې په کاروان برید ۲عسکر قتل ۱ژوبل شو**

دهلمندولایت مرکزلشکرګاه اړوند دباباجي دسپین مسجدپه سیمه کـې ددښـمن پـه موټرېز کـاروان وسـلوال بریدترسـره شو،دبرید په مهال دوه تنه کاروان ساتونکي مړه اویوبـل سخت ژوبل شو. ۲۰۱۴/۳/۳۱

**باباجي کې دګډدښمن له عسکروسره سخته جګړه وشوه**

دهلمنـدولایت د مرکـز لشـکرګاه اړونـد د بابـاجي دزرغـوني چارراهي په سیمه کې هغه مهال له اشغالګرو اوګوډاګیو عسکرو سره جګړه وشوه چې سیمي تـه دچورلکوپـه توسط راښکته شول،په جګړه کې دښمن تـه تلفات واوښتل خودقیقـه شـمېره یې نه ده ترلاسه شوې. ۲۰۱۴/۳/۳۱

**لشکرګاه کې ۲شوبلي تخریب ۹پولیس مړه اوژوبل شول**

دهلمندولایت د مرکز لشکرګاه اړوند داول سرک په سیمه کې لـــه پولیســـو ســـره چـــې ســـیمي تـــه دعملیاتوپـــه موخـه راووتـل،خونړۍ نښته وشوه، دجګړې پـه جریـان کې ددښمن ۲شوبلي په ماینونو والوزول شوې چې پـه بشپړه توګـه ویجاړې اوپکې ناست ۵تنه پـولیس مـړه او ۴تنـه سخت ژوبـل شول، په دي سربېره په جګړه کې هم دښمن ته تلفات واوښتل خودقیقه شمېره یې نـه ده ترلاسـه شـوې، پـه جګـړه کـې یـوتن مجاهددشهادت لوړمقام ته ورسید، انالله واناالیه راجعون ۲۰۱۴/۳/۳۱

**موسی کلاکې یوپولیس قتل بل سخت ژوبل شو**

